ترون

د پښتو د معاصر غزل کاروان سالار خدای بخښلی

امیر حمزه خان شینواري په نوم



له ښئ خوا همېش خليل، محمّد صديق پسرلی، حمزه بابا او غلام فاروق چشتي

دا تصوير د ۱۹۸۸ کال د مارچ په اومه نېټه اخيستل شوی،

## بسم الله الرحمن الرحیم

# د سریزی په ځای

کله چې ما ددې « ماتې شپیلۍ » زړه ته د وړوکلو هڅه وکړه نو عالم عالم نواوي یې په پردو کې پرتې وې ، زما زړه غوښتل چې هره پرده وغږوم او هره نغمه د غزل په جامه کې سینګار شوې وګورم ، خو د بابا شوي «پسرلي» د طبعې سخاوت د مهاجرت په کچکول کې نه ځائیده ، بناء له باغه مې غنچه او له غنچې مې څو ګلونه د ذوق خاوندانو ته را ټول کړل ، چې هیله ده ادبي تنده به یې پرې ماته شي .

په دې ټولګه کې د شاعر ۲۵۰ غزلې چې ډیره برخه یې د شپیتمو کلونو دي ما په خپله خوښه غوره کړي ، چون په دې کلونو کې زموږ هیواد او ولس د خپل تاریخ له یوې ډیرې بدې او غمونکې تراژیدي

سره مخ دی نو ماته شپیلۍ هم بوازې دا ترانه غروي او د مولانا په قول :

از نیستان تامرا ببریده اند

از نفیرم مرد وزن نالیده اند

مهاجرت ، پردیسي ، بیوسي ، اشتیاق ، حسرت ، حماسه او د ټولو په سر کې مینه له نورو ډیرو سوداوو او پریشانیو سره د کتاب په متن کې وپلټئ او که څه لیکل پرې غوارئ نو د همدې پاڼې پاته برخه ستاسو په خدمت کې ده .

په مینه

امان الله ساهو

پیښور - ۱۹۹٤ ـ ٤ ـ ۱٤

۱

۱۰ - ۷ - ۷۱

## التجاء

خدایه زړه مې کړې د حسن د باغ زړی
چې هر ځای یې زدم او مینه ترې ټوکیږي
ربه روح مې د ښکلا د دند پرې کړې
چې د حسن په جلوو کې دې پتیرې

هر نفس ته مې د نور وزرې غواړم
چې دروړي مې ستا د یادو تر دُرشله
هر نظر مې د لمر سپینه پلوشه کړې
چې جاریږي دې د حُسن له بُرجله

هر ارمان چې مې د زړهٔ په کورکې زېږي
د ښايست په مخ يې سپکې سترګې وا کړه
هر هوس چې مې په ذهن مسخوليږي
لـه ښيګنې سره مينه ور پيدا کړه

تصور مې کړه د لمر تر تندي هم ورين
انديښنه د فرشتو غوندی معصومه
رنګين خيال را د شفق تر تابلو ګانو
نوا راکړه د مظلوم تر زړهٔ مظلومه

په غزلو کې مې پو کړه د هنر ساه
ترانو کې مې جاري کړه د ژوند وينې
ځلوريځې مې د حسن شګوفی کړه
او نظمونه مې ور ور ميوې د مينې

د يوهٔ ښه آغاز سريځه يې کړې ربـه
چې له ژوند سره وروستی سندره وايم
که قمري شم د طوبی هم ، همه حسنه
« تا به غواړم ، تا به بولم ، تا به ستايم » *

---

* - قادرخان خټك

## ٦٧ - میزان

--------

که دی د نازجلوه د لمر غوندی سینا ونیسي
« د طور ډیوې ته به موسي ید بیضا ونیسی » *
یو ځل دې بیا ویده بلال ته د آذان ووایه
چې منکران دې هم لمن د الا لله ونیسی
د رحیل اذن غواړي بیا کاروان سالاره د عشق
چې د یثرب مومنان لاره د بطحا ونیسی
مېن قمري دې د طوبی په څانگو ځاله نه ږدي
که په جنت کې هم پلو ورته طوبا ونیسي
د عشق رهرو ته دې مزل د ژوندون سیکه بخسي
د بړبوکي غوندې چې لاره د صحرا ونیسي
مسلمانانو ته تلقین کړه بیا هغه خبري
چې د ایمان په نور د لمر غوندی دنیا ونیسي
په دې مادي عالم کې مومي تقدس د کتاب
چې لکه توری د زړه غېږه کې معنا ونیسي
په دې تور تم کې سخ د هغو مومنانو په حال
چې لکه شمه په سر چتر د رڼا ونیسي
خدایه « پسرلي » ته هغه عشق ، هغه جذبه وبخښه
چې مسلمان غوندی لمن د مصطفا ونیسي

---

* - د صائي اصفهانی د یوی مصراع ژباړه ده هغه وایی :

«کلیم دست به رخسار شمع طور گرفت »

پیښور جوزا ۱۳٦۵

---

ځه شنديږ رنګونه د هولۍ په مخ
ما د مینی داغ کړی د نړۍ په مخ
تیټ او پاس ته ګوري نه جوهر ته ځوك
وریخ هم توکی لاړې د سیپۍ په مخ
داسې چې تر ستورو هم پۍ مخې شوې
مور دې با وهلی دایم پۍ په مخ
را شه ای دحسن سبا ماته کړه
مړه خوله د شرم د غوټۍ په مخ
ستا پلو به بیرته درته ونیسم
نه ګورې چې ماته د خولۍ په مخ
هغسې مې خولهٔ وریاندې ایښې وای
څنګه چې یې اور زدي د ستۍ په مخ
کاشکې یې پر مخ شوای د حیا خوله
خال ، زخه که نه شوم د تجلۍ په مخ
تورې ترهیدلې سترګې ستا مګر
ښکلې ! غړیدلې د هوسۍ په مخ
ځه چې یوه کیږدۍ جلا له خلکو نه
ولټوو پورته د سپوږمۍ په مخ

## ٥

جوزا - ۱۳٦٥

---

څو زما په نظر راشی بیرته درومی
لکه سوی شرر راشی بیرته درومی
ما هم ځه څه سر فلمي د ژوند لیدلې
نا مفهومی ژر ژر راشی بیرته درومی
د خوښی ورځې هم لیږی وی هم سپکې
چې له کاله اختر راشی بیرته درومی
ناکرار فطرت څپه د سمندر کړه
د ساحل تر بستر راشی بیرته درومی
څو چې زړهٔ یې هرکلی ته جوړوم خولهٔ
سوي زړهٔ ته خبر راشی ، بیرته درومی
کری شپه مې لکه شپه په زړهٔ تیاره وي
څو سبا لکه لمر راشی بیرته درومی
رعب د حسن یې په وصل چاره کیږدي
تر بڼو مې نظر راشی بیرته درومی
زړهٔ مې ګوره ستا د ناز قدم بوسي ته
لکه موج په سر راشی بیرته درومی
ښاپیری مې د زیړي لمر په وړانګو کې
مازدیګر مازدیګر راشی بیرته درومی

جوزا - ۱۳٦۵

---

لکه سر چې د اُفق په بالین لمر زدي
تش ګړی په هومره حسن په ګودر زدی
کاشکی لز خو یې د حسن پیښی ښکل کړای
سترګی خیال مې ورته څومره غر په غر زدي
هر دیدن تر بل دیدن یم ورته تږی
لکه خوب کې تږی شونډې په ساغر زدی
حسرتونو مې په زړه ایښی داغونه
لکه شمې چې په قبر مینجور زدی
که خلقت نه وي د حسن په خدمت کې
د سیپۍ په زړه کې څوک چا ته ګوهر زدی؟
خپل تیری نه وینی هیڅوک ، سمندر هم
تل د امن د ساحل په پښو کې سر زدي
پاته مړو پرې ځانونه وي سپین کړي
په قبرونو چې اکثر ګورو مر مر زدي
د مینو خلکو بیل شام وسحر وي
څوکیدار له مجبوریته سر سحر زدي
د «پسرلی» په زړهٔ یو نوی پسرلی خور کړي
چی هر پل د ناز له لطفه پرې دلبر زدي

جوزا - ۱۳٦٥

چې په زړهٔ وي لکه شمه ، په مغ ګل څوک
بې له تا به هسې ښکلی وي لا بل څوک
د ویشتلي زړهٔ فریاد مې تا ته دروور
نور مې څوک وو ، ما به نور لا را بلل څوک
لږ خو پرانیزه د تورو زلفو ولونه
مګر ږدی هسې دامونه ول په ول څوک
ناز د حسن پیداوار وي نه د زده کړې
کنه جوړ دی بې مچیو کړي عسل څوک
د دلبرو ناز او حسن غریزي وي
دا نکریزی ږدی د زرکو په منګول څوک
تسلې یې هم په نوی پرهر کیـــــــږي
چې وي مړو کتو ویشتلی په کوګل څــوک
بینایان به یې په کندو کې پسې غواړي
چې د تیغ په رڼا نه وهي مزل څـــــوک

جوزا - ١٣٦٥

تا چې لاس تر غاړه کړه حیا د ناز
کوم نظر لوګی کړمه اوس ستا د ناز
یو ه نګاه دې څومره اثربخشه وه؟
واړه شپه دې زه وم او سودا د ناز
زما دې تودو اوښکو ته به څه ګوري
نه یې شته په ستورو هم پروا د ناز
خپلې دوه عشوې یې چې یو شان نه دي
بل به یې لا چیرته وي همتا د ناز؟
څومره په مغرور حسن مغروره وه؟
ناڅې یې په سترګو کې موسکا د ناز
دوه جهانه څنګه ورنه جار نه کړم؟
هره نګاه څانته ده دنیا د ناز
مست یې کړم خوتنده مې لا زیاته شوه
څه غوره باده لري مینا د ناز
راشي هر څه یوسي بیرته وګرځي
پیایې د نګاه څپې دریا دناز
راز مې د نازکو زړونو غواړي زړه،
څه به وي « پسرلیه » تقاضا د ناز

جوزا - ۱۳٦٥

---

وامې ړوه عمره ، په تادي ورځې
ګوندی راشي بیا د ابادي ورځې
ستړي شوو زشتي مو ډیرې ولیدې
ګړی کړه د حسن په وادي ورځې
شل پیړۍ ، لا ډیرې د وراني وشوې
څوبه وي ، لا څو د بربادي ورځې ؟
موږ که له دې شپو ورځو تر پوزې وو
شوې زموږ له چیغو فريادي ورځې
خاورې د غمونو په سر اړوم
ګوندی را ستنې شي د ښادي ورځې
سر چې د غلیم مو په تهداب کې ږدو
ها ورځې به بولو بنيادي ورځې
یوه شپه لکه شمه هسکه غاړه ژوند
ارزي خدایږو سل کاله عادي ور ځې
خدایه که مې یوه دُعا قبلیږي نن
غواړم د افغان د ازادي ورځې

۱۳/۲/٦٥ ـ پېښور

---

رامې شي خاطر ته ، خو چې څنگه ، چا ته ورته وي؟
بر په تورو ورو کې گرندۍ برېښنا ته ورته وي
مست مې تصور کړي خو په سترگو يې ليدای نه شم
پټه په پياله کښې د نشې نڅا ته ورته وي
څه نيسې د شمې غوندي مخته د پانوس پلو ؟
ښکلې په مينا کښې ليونۍ صهبا ته ورته وي
نپوهيږم دا وي چې را درومی که خيال ددې؟
راشي خو له لطفه د څوانی رويا ته ورته وي
حسن به دې لمر او سپوږمۍ وبولم خو څه به وي
هغه څه چې لږ څه دې خوږې ادا ته ورته وي
پټه چې په زړونو پسې گورې تر پلو لاندې
ښکارې پخه مينه هم تنکۍ ښکلا ته ورته وي
جار د سوې مينې ، زړهٔ په بڼ د ېناپيرو کړي گله
شور د تاندو هيلو يې د ښکلو ورا ته ورته وي
گوره قفسونو ته دې ، څانگې پسې څه غواړې ؟
زخم د ويشتلي زړهٔ د گل موسکا ته ورته وي

جوزا ـ۱۳٦۵ ـ پيښور

---

ځئ چې د ژوند لارې لکه سين په غوغا لنډې کړو
لويې فاصلې لکه ټپې په نښا لنډې کړو
تورې اوږدې شپې کړي مزاحم فکرونه لا اوږدې
دا اوږدې لمحې مګر په جام ، په مينا لنډې کړو
نه به تريخوو په ځان د نورو له خبرو ژوند
موږ به اولتر په څه شي ژبې د چا لنډې کړو؟ ·
ډير يو لري کړي بدو پيښنو له ښادی ځنې
ځانته به په مينه د خوښې ورځی را لنډې کړو
يو ځل که را اوږد کړې د نظر لاس له اوږدو بڼو
زړهٔ او زړهٔ به هم ګيلې ماڼې په وفا لنډې کړو
لارې د ښادې لحظې په منډه منډه تيرې شوې
غم که مو تر پښو لاندی کړ، وختې به بيا لنډې کړو
څه ګورئ چې څه وو؟ څه شوو؟ دوك د لارې خنډ وينم
ګوندی مرحلې د زړهٔ غوښتونکی سبا لنډې کړو

چې تا به پریښودم زهٔ ، انتظار داسې نه وو
د ناز په ژبه پوه ښایې روبار داسې نه وو
په ځان او په ایمان چې دې لا بولمه ارزانه
په مصر کې د حسن خریدار داسې نه وو
هوښیاری مرغی هم ایله په دوو لومو وي نښتې
بل زړهٔ په سلو لومو گرفتار داسې نه وو
د مستې مستوونکی ځنک ، له زرکو غواړئ څه؟
د غرونو د رودونو هم رفتار داسې نه وو
د مینی کمزورئ چې به وي چا ورته ښوولې
پخوا خو یې د نرم زړهٔ گفتار داسې نه وو
هر تور ، تومت چې غواړی په کمزور ورتپل کیږي
په ماته خوله به چاته وایو یار ؟! داسې نه وو
درست عمر که یې ځاله په ازغو کې جوړوله
مات کړی مې په زړهٔ کې مینی خار داسې نه وو
پخوا هم دل آزار ې وې د حسن کرشمې
چې زهٔ په زړهٔ نازك یم که آزار داسې نه وو
خاطر مې گل زمین کړ تا ته ځنگه ښکلې طبعې
په مستو ایلاغونو کې بهار داسې نه وو

راغی ، چې ته راغلې ستا په پلۀ بهار
ګوره څنګه کيښوده پرې خولۀ بهار
ما وې چې ښکار کړی به دي يو زه يم
بند دی و د زلفو په هر ولۀ بهار
هر ګل به يوه بله سره سکروټه وی
څه کړم که را پريږدی اوس په تلۀ بهار
روغ جهان يې ونيو په شپول حسن
وای که دی نازونه هم کړی ملۀ بهار
خدای يې په بلبلو پوری ښه لره
څه به کړي د ناز د ديدن غلۀ بهار

پیښور سرطان ۱۳٦٥

---

ای د حسن خدایه حسن بیا چمن ته را وله
تللي بهارونه د پسرلي وطن ته راوله
لیږ څه خو په نغښتې موسکا یا په یوې ګویا نګاه
روح مې د زلما د ژوندون مړه بدن ته راوله
نه ورځې ګلونو ته خندا د هوس نه ورځې
کړی بیا د شوخو ښاپیرو لمن ته راوله
نبض د صحرا درېسې غورځي قیسه چیرته یې ؟!
ښکلې غرځنۍ درسره بیا دمن ته راوله
بیا مې په ویشتلي زړهٔ د زانو قافلې ګرځي
راشه یو کاروان مستي خو رنګ مدفن ته راوله

پېښور سرطان ۱۳٦٥

چا درته ويلي دي چې ګل په ګل کې وتومبه؟
دا له مينې ډك زړهٔ دي د ناز وربل کې وتومبه
راشه د ښکلا بهاره! نور څه درنه نه غواړم
يو د التفات ګل مې زخمي کوګل کې وتومبه
نور به مې تر دې ښه لا ای مينې په زړهٔ څهٔ وکړې
دا د عقيدت نشان په لور دُرشل کې وتومبه
خير دی کـه د زړهٔ ګل مې بيا پاڼې پاڼې يوسي باد
دا د مينې نخښته دې د زلفو ول کې وتومبه
ورمې وړه تابوت چې يې بلا اخلم په مړينه هم
دغه تش ګوجی په ښايسته کابل کې وتومبه
چيرته دی ملالې ! د نصرت په تکري پټ کړ مخ؟
يوه پيڅه يې بيا په کوم تاودهٔ مورچل کې وتومبه
تاج د افتخار د هندوکش له سره کوز مه شه
درست غشی زما په زړګي يو په بل کې وتومبه

۱۳٦٥ سرطان - پېښور

بې نيازو څهٔ بزدئ د عشاقو په مدفن ګلونه؟
پسرلی هر کال ورته راوړي لمن لمن ګلونه
په ژوند خو هيڅکله بهار راته زړهٔ نه کړ نژدې
کاشکې مې راوړي لکه شمه څنګدن ګلونه
چې ستا پلو ورباندی نه و لګولی نسيم
ښېته بې روحه غوندی خاندی د ګلشن ګلونه
د زړهٔ زخمونه مې بيواکه سترګې وغړوي
چې مې په ذهن وغوړيږي د وطن ګلوونه
چې تصور دې راشي نوری خاطرې وځېږی
مستی هوسی کړی تر ښو لاندی د ختن ګلونه
په دې تور تم کې دی د حسن تصوره ګرځم
چې لکه ستو ری راوړی زړهٔ ته ماسخوتن ګلونه
اوښکو مې دومره ډيری وينی ابته کړې د زړهٔ
چې رنګولای شي «پسرلی »پرې يو چمن ګلونه

اسد - ۱۳٦۵

---

ماءهره ساه نغمه ، نغمه کړه چې اشنا یې واوری
آبشار له غرونو وهي سر خو که دریا یې واوري
بیګا محفل کې لکه شمه سوځیدم ویلیدم
په پټه خوله ورته ګویا وم چې تش دا یې واوري
نازك دماغ به یې په څه توګه راغب شي ورته
زۀ لا په سر کې د کیسې یم ، انتها یې واوري
مجنون د مینې د کاروان جرس له ځانه کړ جوړ
پریږدئ چې وېې چوي زړۀ خو که لیلا یې واوري
چې بوی د ګلو له رنګونو لمن ونغښتله
بلبله شور دې لیونی کړه چې صحرا یې واوري
د غوټۍ بزه ګریوان ته نه ګوری بیدرده بورا
په سترګو ړوند ورته غوږ ایښې چې خندا یې واوري
په ماشیني عالم کې تت دی د بمونو ږغ هم
د زنځیر شور مې څه وچت کرم چې دنیا یې واوري
بیرته ماشوم کړم « پسرلیه » تقاضو د مینې
چې د زړۀ حال ورته بیا بیا ووایم بیا یې واوری

۱۳٦۵ اسد ـ پېښور

پـه دومره ژبـو کې دی کومه يوه وه خپله ژبه؟
چې هر ساعت مې لکه اور سوځی په بله ژبه
په سلو ژبو چې سوسن په بڼ کې پټه خولهٔ و
پوه شوم نشه د خپل ښايست اخلي له ګله ژبه
دومره چې ژر ژر په هردم په بله بله اوړي
ته وا زده کړي يې له خپل خواره اوربله ژبه
د زړګی غوټه فريادونه مې ترې غوټه راوړل
پټه مې شرم د حضور ورته چيچله ژبه
له زړهٔ تر ژبې پورې ځي راځي تا نه واوريدې
نازکې هيلې به څه وړاندې کړي شړله ژبه
که پوهيدلې وای چې دا مې په وينا خفه شوه
ما به په خپله لکه شمه سوځوله ژبه
هنر يې نه و که ګلونه ورته وخنديدل
بلبل د مينې نوی نوی زده کوله ژبه
که روڼې اوښکې دی « پسرليه » ترجمانی نه شی
پټو دردونو تـه لفظونـه لري کله ژبـه

پیښور - اسد ۱۳٦۵

سلام چې په دوه لاسه در لیږم له لری لری
په دې توګه هم زړهٔ ټکوروم له لری لری
د ناز او دنیازلری واټن ته لره پام
پوښتنه چې کوې ګوره درځم له لری لری
نسیم ته چې د مینې غېږ پرانیستې وي ګلونو
ستا پټ لطف به څنګه نه منم له لری لری
په هر ساده نظر کې بې وي سل توفانه نغښتي
د حسن آینه ښکاریږي یم له لری لری
تر هری میوی خوږ دی ، خو خوړل یې غواړي زړهٔ
څه ښه ننداره نه وی پردی غم له لری لری
دا ښویه سپوږمۍ هم کوږی ناواری ده که ورشی
ښکاریږی دیر کاږه سړي ته سم له لری لری
د ستورو ملغلری چې د هسك په کټ شنډلی
د خیال په نري تار درته پیم له لری لری
له ژوندسره حاصله آشنایي کړه بشر دومره
له ځان سره غزیږو هغه هم له لری لری
د زور ړانده کاڼه به څه خبر وی له ویشتلو
غورزونه کهوي هسی هم بم له لری لری
وطنه چې وختونو دې له غیږې نه جدا کړم
سیلۍ شوم په سر خاوری بادوم له لری لری

پیښور - اسد ۱۳٦٥

---

د حسن ناز به وړم ، که ناز دهیلو
په ناز بدل شو را ته نیاز د هیلو
تورو لیمو یې وو رانجه ورکړی
چې ورته تت می شوآواز د هیلو
لیونی زړهٔ مې شو «حافظ » د حسن
چې مینی ګډ کړم په «شیراز» دهیلو
نازك رازونه یې د حسن څیري
هیڅ نپوهیږمه په راز د هیلو
له توفانونو در تیر شوی ونښت
د ساحل شګوکې جهاز د هیلو
دا چې د حسن په نغمو سترې ده
څنګه شروع کړم ورته ساز د هیلو؟
له ویلی تیږو که شیشې جوړیږی
نازك شعرونه شی ګداز دهیلو
« پسرلیه » کله به انجام ته رسی
دوه ورځې ژوند خو دی آغاز د هیلو

۱۳٦۵ اسد ـ پېښور

---

درد مې سوي زړهٔ ته په بانه راځي

داسې مصيبت دې په چا نه راځي

داغ د شمې ښه دی د فراق تر اور

څه ته وزر سوې پروانه راځي؟

يو نظر مې مستې سترګې وليدی

ماوی چې سياره ميخانه راځي

ګوره د مين په لندو سترګو کې

سطحې ته په خپله دُردانه راځي

دښت له مجنونانو خالي کيږي نه

تل په زمانی پسې زمانه راځي

مستو ته تر پښو لاندې مړه ښکاري مست

موج چې ساحل ته مستانه راځي

پيښو بيا په سپينه ږيره طفل کړم

خوب په دردونکې افسانه راځي

اوس چې د دښمن خبره هم کوم

خولې ته مې د مينې ترانه راځي

نور به توکل په يګانه لرم

کورته چې لښکر د بيګانه راځي

۱۳٦٥ اسد ـ پېښور

---

راغلم او زاړه ، نوي زخمونه مې راوړي دي
څه مې ګورې پنه ؟ تش غمونه مې را وړي دي
زړهٔ مې د غوټۍ تصویر و ، یو بهار هم ګل نه کړ
ډېر نه غوړېدونکي ارمانونه مې را وړي دي
مینه مې هر څاڅکي وینه غوټه کړې د تا په شوق
واړه تن مې زړهٔ شو درته ، زړونه مې را وړي دي
دومره غوږخو ونیسه چې غوټۍ درته وسپړم
مینې سپېلنې کړم فریادونه مې را وړي دي
دومره خالي لاس هم د نړۍ له ښاره نه راځم
ډېر د ژوند خوارژه ، ترخه یادونه مې را وړي دي
نورو څولۍ ډکې کړې له خونده ، خو زما په وار
چارې د احساس وې ، حسرتونه مې را وړي دي
مینه مې څه پوښتې ؟ په زړهٔ ستړې اباسین یې کړم
بحره ! ډېر شوررونه ـ توفانونه مې را وړي دي
زړهٔ کې که مې ستا په مینه ډېر ازغي مات شوي وي
خیر دی چې د خیا ل ښکلي ګلونه مې راوړي دي

۱/٦/۱۳٦٥ - پیښور

---

یواځې نه دی د ښایست په جلوو ښکلی شمی
د زړهٔ له داغه په محفل کې ځلیدلی شمی
که پتنګ وسو ، پاس د حسن شمی هم اوبه کړی
ښایست او مینی وی په زړهٔ باندی داغلی شمی
چی نه سوځېږی ، نه محفل باندی رڼېږی د چا
د تصویر شمی هم لا کله چا بللی شمی
د پتنګانو زیارت ګاه دی په ژوند ولی نه شی
د سوی زړهٔ په تودو اوښکو لمبیدلی شمی
ورته بخښلی ګوره خول د ښکلا اور د مینی
له دغه تاوه وی په مړو ژوندو منلی شمی
بیګاه – د عشق د درد او سوز کیسی د اور په ژبه
د پتنګانو په وزرونو ولیکلی شمی
غوارې چی دیری ودریږی د تیارو په مخ کی
له داره نه وی د فانوس په خوا کی غلی شمی
« پسرلیه » خدای خبر چی ستا به توره شپه رڼه کړی
که دی مسرې شی د غزلو لګیدلی شمی

۱۳٦٥ - سنبله - پیښور

---

اور یی د نگاه که د مشعل رڼا ته ورته وی
شور یي د مینو د بلبل نوا ته ورته وی
ډیر می د خیال پری خانو ته سر دننه کړ
یوه ښاپیری نه وه چی په حسن تا ته ورته وی
زه که تا ته ورته نه یم مینه دی پاللی شم
شرط د مستی نه دی چی دی خم صهبا ته ورته وی
څوك چی لنډه منډه کوی گوره د یاریٔ نه دی
سیل کی بیړی نه گرځی که څه دریا ته ورته وی
عمر چی تیریږی سړی لیز لیز قانع کیږی چی
ژوند په رڼو سترگو هم درنې رویا ته ورته وی

۱۳٦٥ - ۷ - ٤ - پیښور

---

نور یی لا ځای د مینی څه غواړی زما په زړهٔ کې
د نفرت غشی یې تومبلی د ایشیا په زړهٔ کې
نه د مجنون پل پونده ښکاری ، نه کیږدۍ د لیلی
بس د وحشت دوړی خورې دی د صحرا په زړهٔ کې
د ګډ ژوندون بزم ته بیا کوم یو چنګیز راغلی ؟
چی د نشی وینه وچیږی د صهبا په زړهٔ کې
د زړهٔ زخمونه می حسرت کړو د تصویر ګلونه
د تل دپاره به می نقش وی موسکا په زړهٔ کې
چی د ستم د چړی خولهٔ څه پې لنده غوندی شي
هغومره وینه به ساتلی وی لا چا په زړهٔ کې
د بدو پیښو ښویدلیو څه خو پښې تینګی کړئ !!
دبری هم دیر ځلی رغړی د دریا په زړهٔ کې
آخر آخر ها د تزار دهوسونو مانۍ
د سرطان بده دانه شوه د دنیا په زړهٔ کې
د بوډۍ تیاله ! غولونکی وی له لری زښته
چې را نژدې شوې تش سراب یی د بیدیا په زړهٔ کې
چی په برچو به دی ایستلو د برژوا له زړهٔ نه
هغهٔ د آز ازغی نن لګ دی واړه ستا په زړهٔ کې

ځم لکه بی میره زانې ، خوا راڅخه ورکه ده
ګرځم په فضا کی ، خو فضا را څخه ورکه ده
نه رپوم سترګی لکه ستوری تر سهاره چی
ډوب یم په رڼا کی او رڼا را څخه ورکه ده
لاس چی لکه سیوری هر دیوال پوری نیولی ځم
پیښنو یم ړوند کړی او امسا را څخه ورکه ده
هسی نه په تا پسی تیارو ته مخه وکړمه
خضره ! را ښولی لار دی بیا راڅخه ورکه ده
ما نه د لیلی دمحمل څه پوښتنې مجنون یی کړم
مرمه په بیدیا کی خو بیدیا را څخه ورکه ده
دا یی دی ویلی : لیونیه ! غواړه ، څه غواړی ؟
عشق دی مګر ورکه مدعا را څخه ورکه ده
څه دی د ګرداب غوندی بیځایه سرګردانه ژوند ؟
ګرځم په دریا کي او دریا راڅخه ورکه ده
زړهٔ له غوښتو ډك دی خو پری پوه نه یم چی څه غواړی
خوله می ورته جوړه کړه ، ویښا راڅخه ورکه ده
ما که په صحرا کی د هر ګرد لمن نیولی وي
ورك یم د مجنون غوندی لیلا را څخه ورکه ده

واړه د تا له پاره د ي او واړه ستا غمونه
که د دنیا غمونه دی - که د عقبا غمونه
چی د دوستی په گل کی بوی د وفا نه منی ځوك
بنایی چی نه یی وی له زړهٔ سره آشنا غمونه
مجنون د کور غمونه وړل او په صحرا یی ښندل
زه را وړم کورته پنډې پنډې د صحرا غمونه
گریوان د زړهٔ به چیری خلاص کړم له پردو غمونو
چی نړی واړه غم خانه شوه ، هره خوا غمونه
بنايي تر حشره می له خاورو زقوم وبوټوي
که می له ځانه سره یوسم گورته دا غمونه
هره لحظه می په زړهٔ ږدی تازه تازه داغونه
د قام - وطن - د نن - پرون او دسبا غمونه
پنځه را ورك چی په جهان کې سر پناه نه مومی
زه په یو موټهزړه کی څه ځای کړم د دنیا غمونه
زړهٔ می له هره غمه ستا د مینی غم جوړوي
ځکه را بولم سوی زړهٔ ته د هرچا غمونه

۱۳٦٥ - سنبله - پیښور

---

د زمانی بهیرکه څه هم مخ په وړاندی درومی
خو ژوند یو سیل دی چی څو ځی هغومره لاندی دورمی
په دی بیدیا کی د مزله په خوند هغه پوه شوی
چی لکه ستوری سره ځی او سره خاندی درومی
هر زړه چی گوري دی د سویو فریادونو غوته
په دی بهیر کی چی هر څومره وینی سپاندی درومی
انسان که ډیر بی زړه وی ، تورو ورو ته هم وگوره
په پلمه ژاړی چی په هسکو ټیټو باندی درومی
څوك به د سوی زړه پوښتنی ته کړی خوله ورجوره ؟
د ناز له موره چی ژوندی هیلی نیم ژواندی درومی
لکه ورمی چی د بڼ پانی بیلی بیلی پوښتی
د تصور ښاپیری هم داسی زړه سواندی درومی
د تا له مخه چی نیولی هسك او ځمکه حسن
په کومه خوا به دی د سویو سوي ساندی درومی

۱۳٦٥ - سنبله - پیښور

---

چې د جنون په صحرا نه کښېني کراری دوړی
را شه په سترګو مې را وشینده د لاری دوړی
چې پرڼدی کټ تر نیمو شپو وی خپل جوهر دی په کار
په پردی بال او پر به څو وی هوا داری دوړی ؟
دماغ د حسن یې د ښت په لمن هم نه منی
د نازېه سترګو کی یې ځای غواړی دا خواری دوړی
د پایمال شویو ، پست فطرتو په شر ، مه واوره څوك
خلی ، خاشی شندی ، په سترګو کوی واری دوړی
دا هم په مینه کی د ځوانو ارمانو خاوری دی
چی د مایوس مین په سترګو کی در ښکاری دوړی

۲/۶/۱۳۵۶ - پېښور

---

غم څه و که غمونه په اهنګ ویده کیدای
دردونه د زخمونو په پالنګ ویده کیدای
د مینې په دنیا کې به هر ډم و آدم خان
د ناز شوخې لیمې که په یوه ترنګ ویده کیدای
تلقین به د مین په زړهٔ هم کړی و اثر
د لمر په آینه باندې که رنګ ویده کیدای
روسانو به له موږ سره پاللې کلې کور
دښمن که له دښمن سره په څنګ ویده کیدای
مورچل به له غازیانو نه هم کله سړیدو
دبلې شمې خواته که پتنګ ویده کیدای
یو ډز به د واورینو غرو په شنو درو کې نه و
همت که سړیدونکې وای او ننګ ویده کیدای
زورګیرو به پخوا لا وای رسۍ را اچولې
احساس د خریت که مو په جنګ ویده کیدای

۱۳۵٦-٦-۳ ـ پېښور

---

یو به په خود او فرزانه نه لری
چی واړه ښار یي میخانه نه لری
وسو ، ایره شو ، ایره باد یووړه
پتنګ دی بله افسانه نه لری
د لیونی له لیونی زړه پرته
ښایست او مینی پیمانه نه لری
په خوار نظر مه ګوره اوښکوته می
بحرونه داسی در دانه نه لری
د عاشقانو هرځای یوه نغمه وی
دغه سین بله ترانه نه لری
چی د هرچا پکی پوره شی مراد
زمان لا هغه زمانه نه لري
د تغافل غیزی ته تښتی ځکه
چی معصوم حسن بهانه نه لری
ظالم صیاد می راته مځکه فضا
کړي لومی لومی خو دانه نه لری
زموږ په حال که یې پوښتي وپوسته
هغه مرغۍ چی آشیانه نه لری

۳/٦/۱۳۵٦ - پېښور

راځه راځه تر پرخې پاکه راځه
لکه سحر ګريبان چاکه راځه
لکه تازه ګل ، په شبنم له شرمه
ښايسته ښکلې عرقناکه راځه
له رمه جوړه لکه ځوانه کبلۍ
جوهر د حسن يې شکاکه راځه
څوك به دی پورته کړې جلوو ته سترګی
لکه د لمر سترګه بيباکه راځه
کله په خوب کی خو ظالمی پټه
لکه راځی نشه له تاکه راځه
لکه تر کور چی دی بيواکه ګرځم
ته هم چی ما وينې بيواکه راځه
چی راځې ناز او عشوې مه هيروه
ليز څه مې پورته له ادراکه راځه
« پسرلی » دی مړ ګنه له مړو څه پروا
که يې خورده اخلې له خاکه راځه

۳/٦/۱۳٦۵ - پیښور

---

ای تر نشې هم نشه بخښې بې خروشه مه ځه
لکه د بنګو پياله بزم ته مدهوشه مه ځه
ناله خو نه یې چې له زړه څخه دی وایستی شم
اوښکه هم نه یې زما د سترګو له آغوشه مه ځه
چې د سرو رګونو وینې په نڅا راولې
مستې بادې نو محفلونو ته بې جوشه مه ځه
ای د ښایست د لوړو غرونو نا کرارې دریا
چې خوب وخیال ته هم د چا ورځې خاموشه مه ځه
د حسن مستې تقدس ته هم څه ګوره د عشق
د زړه حرم ته چې ورځې کله مې نوشه مه ځه
د عاشقانو زړونه غواړی درنه نور داغونه
د پتنګانو ټول ته شمې ګلفروشه مه ځه
سپینه سپوږمۍ شه د پسرلی رویایې شپه رونه کړه
وره غوټۍ نه یې بهونو ته رو پوشه مه ځه
د « پسرلی » روح روانه سل بهاره در جار
د نو بهار غوندی لمنو ته ګلپوشه مه ځه

۱۳٦٥ ـ ٦ـ ٤ ـ پیښور

---

په یوه شپه غم نه ارزی ګرده ژوندون
د نیمی لاری مل نا مرده ژوندون
تر څو به ځان ورپوری ونښلوو ؟
لمن څنډی آخر له ګرده ژوندون
چی څوك له درده نا آشنا وی هغه -
په بیدردی وژنی بی درده ژوندون
بل به لا څوك را سره غم وویښنی ؟
سترګی می پټی کړی له درده ژوندون
له ظالم ژوند نه هر یو داسی ګڼو
د عالم غچ اخلی له فرده ژوندون
لږ تاو به هم نه وو په زړه کی زما
که سړیدای له آه سرده ژوندون

۱۳٦۵ ـ ٦ـ ۵ ـ پيسور

---

چی د ښايست جلوو ته بولی نقابونه لومی
ښکلی تصوير ته به هم وي ښکلی قابونه لومی
فرمان بردار فرمانروا ته غاړه نه ږدی مدام
شی کله کله سوارکار ته رکابونه لومی
د يو ملت د احساساتو مخه چا نيولی؟
مستو څپو ته که ږدی ږدې دی گردابونه لومی
د تهذيب لومی د الوت وزری لا غوړوی
مگر نغموته دی تارونه ربابونه لومی ؟
په ځان کی ورکه کله نقص او کله گټه راوړی
ځينو اشخاصو ته شی لوړ لوړ خطابونه لومی
لا د تاکونو په کږو خانگو وو فکر شکمن
چی به په جام کی راته کيږدی شرابونه لومی
کتبی دامونه هم شته وږو ملتو ته ايښی
چی عنوانونه يې دانې دی او بابونه لومی
د استعمار په تنبولی‌کی ملتونه نښتلی
« پسرليه »نه وی بس د زلفو تنابونه لومی

۱۳٦۵ـ ٦ـ ٦ ـ پېښور

---

د خپل او بل په وینو سور شو د پتمنو وطن
د پلنو دښتو،لوړو غرونو ، شنو لمنو وطن
د عقابانو ، د بازانو ، د بلبلو ځاله
د ننګیالیو ، توریالیو ، د خوږمنو وطن
د کینې په حکم ، د پستی په لمبه وسوځاوه
خلق و پرچم یعنی بی شرمه غوندی بنو وطن
له سرو وحشي خرسانو ځوك دی چی لیږ هم وپوښتی
چا کړ خزان د رویایی سنکلو ځوږمنو وطن
د نړی سپینه ملغلره « هری » چا ماته کړه
ام البلاد شو د بی کورو بې کفنو وطن
د فرشتو ځاله دی خدای په اهریمن نه لوټی
د جرګو کور دی نه کړی رب د میرخمنو وطن
هاله به شا مدام اختر وی « پسرلیه » که نه ؟
چی له ړنګو ځنی وی پاك د بی وطنو وطن

۱۳۶۵ـ ۶ـ ۶ ـ پیښور

---

نوره به می څه واورې خبر د زړه

هیلی می تکیږی په مجمر د زړه

موج چی دیٔ یوې جلوې بیځایه کړ

څومره بې تمکینه و لنگر د زړه

څه کینې په پرشو کی فرهاده حسن

نقش کړه شیرینه دی په سر د زړه

دا مرغه نیولی څه بې درده لاس

باسی لکه طفل بال او پر د زړه

ته چی می له مینی هم مخ اړوی

وبه نیسم چا ته ډک ساغر د زړه ؟

هر چا له خپل زړهٔ هم اړولی مخ

وغوړوم چاته می دفتر د زړه

تل تل دی آباد اوسه میهن د ناز

بیا بیا می را وسوځه کشور د زړه

وساته د حسن د غنا اسباب

مه ماتوه هیڅکله گوهر د زړه

۱۳۶۵ـ ٦ـ ٦ ـ پيښور

---

چې باغ و بڼ د اميدونو له بنياده ووت
د زړه فغان مې لکه شمه له فرياده ووت
څوك به ويده عالم را وينښ کړی؟ورته خير کړې ربه
د وينو سيل مې هری خوا ته له هيواده ووت
د ابتلا جهان دی پيښې ښه او بد بيلوی
بوس او دانې شی جلا درمند چې له باده ووت
شيرينې پام ! چې د خسرو په زړه لکيرې آخر
هغه خنجر چې په باور کې له فرهاده ووت
کوم اوسيلی چې د مظلوم له سوی زړه را وزی
بې داده نه شی پاتيدای که له بيداده ووت
د کونډو رنډو يتيمانو دی خدای زيرمه وکړی
د ستم غشی له پاميراو له شمشاده ووت
له حسن او مينی ښکاری لوښ د بلبلانو وطن
رنگين څوړمنی مو د ښنو درو له ياده ووت
د پت دژوند دپاره بويه واړه عمر جهاد
ښه آس لايق شی د چړې که له جهاده ووت
تا به په دومره کشت وخون کی هلته څوك خبروی
ستړی « پسرلې » که دی له دې حسرت آباده ووت

۱۳٦۵ - ٦ - ۷ - پیښور

---

ولی یارانو د ژوند ناوی بد رنګه ګڼئ
هره نغمه چی نا آشنا وی بې آهنګه ګڼئ
که خاوره هم ورباندی واړوی هوس د ودی
له داني نه ځی ، هیله من زړونه بیا څنګه ګڼئ ؟
څه لاس وپښی وهل په کار دی د چو چونو غوندی
که دا نړی د خپل الوت د پاره تنګه ګڼئ
له دد و دام سره یې ژوند وی د صحرا په زړه کې
هغه مجنون چې یې بې فکراو بې فرهنګه ګڼئ
د پرولتاریا دکتاتوری ته چا لمن وهلی ؟
که د ستم لمبی له تاج او له اورنګه ګڼئ
داسی ښکاریږی چی امید نشته د بیا سمیدو
دا خپلی تولی بد مرغی چې له فرنګه ګڼئ
په خپل تمیز باندی مو څرنګه کړې سترګی پټی
چې څه په چرسو حواله کړئ څه له بنګه ګڼئ
د مخلوقاتو د اشرف به شرافت په څه وی ؟
چی ناګزیر انسان انسان سره له جنګه ګڼئ
آخر یو څه خو دی له هغه ذاته شرم په کار
چی همیشه یې مخامخ او یا له څنګه ګڼئ

۱۳٦٥ -٦ - ۹ - پیښور

---

نه پوهیږم وګرځم له نازه یي ؟

یا خو سپیلنی شم له آوازه یی ؟

پریږده کور ضمیره چې خپل ځان وینی

مه پوښته د حسن له اعجازه یې

حسن هم له ځانه ناکراره وی

ښکاری د رنګونو له پروازه یې

اور دی د عشق بل وه ، بد انجام مه شه

داغ که می پر داغ ږدی له آغازه یی

نه د حسن سپکه غواړی ، نه د عشق

دومره را ښکاره شوه له اندازه یی

مه څیره د زړونو پردی مه څیره

سرې لمبې به پورته شي له سازه یی

نه پوهیږم حسن و لا څه طلسم

مرم ورپسی پوه نه یم له رازه یی

۱۳٦٥ - ٦ - ۹ - پیښور

---

یاره چې په اور باندی مستیږی اور
پریږده چې په زړهٔ کې مې بلیږی اور
اور اوبه کیدل مې اوریدلی وو
اوښکې مې چې ګورم اوبه کیږی اور
څه چل په لیدو په اوریدو کې و
ډک له وینو زړهٔ ته چې را لویږی اور
سور سالو په سر له کوره ووته
ما چې وی له سروی را تاویږی اور
مه وایه د ښکلیو زړونه نه سوځی
کله په وریځو هم لګیږی اور
کور ته د عشاقو شمی څه وروړې
خپله یې له خاورو را لتیږی اور
مینی لکه لمر راکړ دزړهٔ سرور
شپه ورځ مې په زړهٔ باندې نخیږی اور
مینه اور 'و، حسن اور و، یاد یې هم
هره خوا چې ګورم را ښکاریږی اور
نورو نه که خاوری ایری پاته شي
ما نه به « پسرلیه » در پاتیږی اور

١٣٦٥ - ٦ - ٩ - پيښور

---

وښنده په زړهٔ مې د هارونو شور
پاخوه د ستور له سازونو شور
چيرته مي د نياز د فريادونو غږ ؟
چيرته يې د ناز د آبشارونو شور ؟
ته پوه شه رباب دی آدم خانه ، پټ
مه چيړه د زلفو د تارونو شور
تهَ با دشفق په جزيره کی وی
جوړ چی کړو د زانو کتارونو شور
را شه د صحرا په شنه لمن کی بيا
غلی کړه د مستو بهارونو شور
غشی دی په شونډو با وهلی وو
اورم چی په تا پسی د ښکارونو شور
مه څه هديرو ته چی محشر نه شی
پورته نه کړی پام ! د مزارونو شور
مه خانده «پسرلی» ته چی په زړه کې يې
ځنګ نه شي د سويو پرهارون شور

۱۳٦٥ - ٦ - ۹ - پېښور

---

ورك زړهٔ مې ځان ورك كړ په مستيو كې
غواړم يې دحسن په كبليو كې
ښكلې خياله ، ما هم دلته مه پرېږده
ورك ښه يم په ستورو ، په سپوږميو كې
لار چې مې دخپلې كوڅې نه موم
ورك يې يم په زلفو په كوڅيو كې
غټې كړې د تا د سپينې غاړې شوق
سپينې ملغلرې په سيپيو كې
ما نه خو د حسن جلوو وركه كړه
لار به وركيده په ترږميو كې
ما چې وې سپوږمۍ په گلو كښېنسته
چا كړ پلو پورته په كيږديو كې
درست عمر به څې او پسې گرځې به
خدايه څومره ناز وو په خوښيو كې ؟
هغسې حسينو كې حسينه يې
څنگه چې خوبي وي په خوبيو كې

۱۳٦٥ - ٦ - ۱۰ - پیښور

---

نور د رنګ و بوی او د هوس له ښاره تللی یم
ښې ته که هم تللی یم بس ستا له پاره تللی یم
پاڼه د خزان شوم نه مې څانګه نه می تیکه شته
ومنه له تا چی د ښایست بهاره تللی یم
ټک می له وطنه په مخ خاوری ایرې اړوي
سورداوربخری وم له سره انګاره تللی یم
هر هر څه زړېږی او سولیږی زه هم دغسی
ترنګ د ژوندی ساز وم اوس له هغه تاره تللی یم
ډیره مې پوتی کړه د نوا غوندی د نی کوڅه
نورد فریادونو له تربت دیاره تللی یم
حسن چی به ومنی که څنګه تقاضی د عشق ؟
دار ته د وفا لکه منصور له داره تللی یم
مینی که لوګی کړم شوءلوګی می په فضا کی خور
بلی یوی هستی ته د عدم په لاره تللی یم
دا چی ورته ګورې « پسرلی » نه دی کالبود یې دی
زه خو لکه بوی د ګل له وران مزاره تللی یم

۱۳٦٥ - ٦ - ۱۰ - پيښور

---

پوهيږم بڼ کې د ګل خواته په څه نه کينستى
تمامى عمر په زړه ناستى ! بې زړهٔ نه کينستى
لکه نګهت کړى ناکراره لطافت د حسن
هر ځاى مې سترګى درته فرش کړى خو ته نه کينستى
په غوغا تيره شى د ناز د جهيل سپينى بطى !
يوه لحظه مى د ليمو په راده نه کينستى
دا چې مى ځان پسى د سپينو اوښکو دارى وينى
د ديدن هيله مى په زړه شوه اوبه نه کينستى
دادى شيرينى وه د حسن که د فن غوښتنه ؟!
نقش دى کښيناوه زما په زړه ته نه کينستى
په يوې نګاه به يې د مينى تنده څه ماته شي
چې په ليمو د « پسرلى » لکه ورهٔ نه کينستى

١٣٦٥ - ٦ - ١٠ - پیښور

---

هره نگاه بله پیمانه لري
هره نغمه بیله ترانه لري
زړهٔ په تصادف نه دی ورکړی ما
هره شمه گوښې پروانه لري
ښه دی چې دهیلو مزی نه شلوی
هره لحظه حسن یوه بانه لري
پریږده د مجنون او دلیلا کیسې
ستا مین هم ښکلې افسانه لري
هغه چې زما په خیال کې ناسته ده
کوم صدف به داسی دُر دانه لري
ولی زړونه نه گوری ظالم صیاد
دا مرغی به هم چیری لانه لري
عقله په نسبی خبرو تیر نه وزی
مینه هم د مینی فرزانه لري
څه په ژرنده دل شي ، څه یې نیش وهی
دغه استعداد هره دانه لري
لا چې دی خواره نه کړې خواره وبښته
پام کوه چې سل ژبی شانه لري

۱۳٦٥ - ٦ - ۱۰ - پېښور

---

دا موږ يو بل ته پټ کتل زده کول
که رنګ له رنګه الوتل زده کول ؟
هغه وحشي کوتره والوتله
خو چې مې زبې څه ويل زده کول
وبخښه ستا د استقبال له پاره
ما له مينا سر ټيټول زده کول
د زړه لمسون وو، د نغمو غوندې مې
له زير وبم نه لټيدل زده کول
بيګا چې شمې سره ډير کښيناستم
شمې له ما نه سوځيدل زده کول
د آئينې په مخ مينه نه وه
ناز يې له نازه زړه را ښکل زده کول
مشق د تيريو وو په بحر کې هم
که موج له موجه پټيدل زده کول
عبث مې لاړې ښې لمحې له ګوتو
چې مې تير عمر ته ورتلل زده کول
ښايي د بل کهکشان ستوري به و
زړه چې تر زړونو جاريدل زده کول

۱۳٦٥ - ٦ - ١٢ - پیښور

---

ورك حواس د ورکو د ستم له زوره مه پوښته
سوې ځالی گوره نور يې حال له اوره مه پوښته
مړ احساس انسان ته په پستئ کی هم مستی بخښی
خلی او ځگونه د دریا له شوره مه پوښته
هر څه په کمزورو تپل کیږی ، ضعف جرم دی
بله د سیاهی وجه له سوی سکوره مه پوښته
موږ هم يوو ملگرو له خپل بحره جلا شوی وره ء
ډك زړهٔ د وریځی له خپل کلی کوره مه پوښته
زه هم بل خراغ کړم د وطن د شهیدانو یاد
سترگو ته می گوره او له زړهٔ می گوره مه پوښته
زړهٔ می تر محشره خدايزده تش شی په آهونو هم
ته می د غمونو له اوږده او پسوره مه پوښته
واك وطن چی نه ولری شپې يې په لحد کی وی
گور له مړی مه پوښته او مړ له گوره مه پوښته
وینی تویول ، ربېل ، ځبل يې د سرو وی کار
نور می د خونکارو له سوټك او لوره مه پوښته

۱۳٦٥ / ٦ / ۱۷ - پیښبور

---

که دی د زلفو سلسله هم کړې اوس خپوره راځم
د مینی تور ته دی له زړه د سترګو توره راځم
پریزدۍ چی دیری اوښکی توي کړم د صحرا په لمن
لکه وریځ د سمندر د زړه له شوره راځم
اوس بدل کړی یم دردونو په یو سوی فغان
لکه نوا مخ په بیدیا د زړه له کوره راځم
نه زه د چا په ژبه پوه شوم نه څوك زما په ژبه
زرکلن مړی یم خو خدایزده له کوم ګوره راځم
بس د جرس غوندی می واړه لار وه چیغه په خوله
نور خبر نه یم چی څو چیرته ؟ له کوم لوره راځم ؟
جلا می سوځی ؟ که به نور زړونه هم سوځی په ما ؟
د بل په لاس کی بله لښته شوم له اوره راځم
ترخه موسکا وم د هستۍ په شونډو ونیوئیدم
خوږه نوا شوم د عدم غوږ ته هر ګوره راځم

۱۳٦٥ - ٦ - ۱۸ - پېښور

---

آبشارشم حوصله چې مې له واکه ووته
ناله مې تر لمنو ګریوه چاکه ووته
چې هره خاطره مې حافظې ده را سپارلې
د سوی زړه په مخ شوه یوه تناکه ووته
په خم کې به درست عمر ولې نه ایښی له درده ؟
نشه چې په ستم له مسته تاکه ووته
په ډېرو ورڅو شپو کې مې د عمر خوبنۍ خوا ته
په ناز - په نخرو راغله خو چالاکه ووته
ښایست او څرېکې نه شي په پردو کې پټېدلای
آخر نغښتې نغمه ځنګه بیباکه ووته
هغومره یې دردونه د آبلې غوندې وو ډېر
چې څومره په پرده کې حیا ناکه ووته
دنیا ته چې را وځي بیا ، په شنه زړه به را وځي
هر ځل که مې سبزه ګورئ له خاکه ووته
فریاد مې د وریت زړه څه د هنر په تول تلئ ؟
خبره مې « پسرلیه » له ادراکه ووته

۱۳٦٥ - ٦ - ۲۰ - پېښور

---

لېږ که پرې له نازه پری واره لمن وڅنډی
غرونه به په خوښه له بهاره لمن وڅنډی
نه یې پرېږدی حسن وچیدو ته د حیا خوله
ګل که له دې پرخی تر سهاره لمن وڅنډی
رنګ ګوندی د وینو د حنا تر رنګه کچه نه وی
خیر دی که له مینی می ناګاره لمن وڅنډی
سوی زړه به اوس د مینی اوره درنه چیرته وړم ؟
څه حاصل شرر که له انګاره لمن وڅنډی ؟
اور می په زړه بل کړ تغافل د بی پروا حسن
کاشکی می د اور د زړه له پاره لمن وڅنډی
ما چی لکه ګرد د خپلی خاوری لمن پرېښوده
پرېږدیٔ چی هر څوک می له غباره لمن وڅنډی
ژوند ته که دی شا کړه « پسرلیه » ږدې منت په چا
ځك به څه په بحر باندی خواره لمن وڅنډی ؟

۱۳٦۵ - ٦ - ۲۱ - پيښور

---

څومره په ادا په هنر الوزی ؟

رنګ چی د حيا په وزر الوزی

پرخی نه وی زړونه چی د شپې ګله !

ستا په حسن کښينی سحر الوزی

لاړ که شي له تا نه به لا چيرته ځی ؟

ومری چی له اوره شررالوزی

ستا مخ ته می فکر ، که په بله و

دير ځلی په خوب کی بشر الوزی

سپکه به د سپکو څه رفعت ګټو

خلی هم د لاړو د سر الوزی

حسن فرشته کړه ښاپيری‌د خيال

تنده چی تر نور د نظر الوزی

لوړ مقام که هر څه وی ، نا امنه دی

پانه چی څو پورته وی ژر الوزی

اوښکو رانه يوړ د ديدن ثمر

دير ځلی اوبو سره بر الوزی

عشق چی يې « پسرليه » وزر وسوځی

بر د رڼهٔ په اور لکه لمر الوزی

## ٦٥ - حوت

ای د ژوندون سینه بشر چیرته وړې

دا خلی خاېنې دی په سر چیرته وړې ؟

څه به می کړې باده له ایرو نه جوړ

چیرته می دا سوی وزر چیرته وړې ؟

اوس خو می لا اور په زړهٔ کی مړ نه دی

دوده دغه سوی شرر چیرته وړې؟

لېږ څه یې په ورو ورو تیروه وخته

قلم د رنګین مازدیګر چیرته وړې ؟

راغلې چی غمونه می د زړه واخلې

غر د خوځیدو نه وی غر چیرته وړې ؟

چیری وړې « پسرلیه » آرزومند زره دی

دغه ډك له میو ساغر چیرته وړې ؟

۱۳٦٥ - میزان. - پیښور

---

نیاز په ناز گوره بدلیږی چې دوام و مومی زوړ شي
د ځگونو قفسونه د آبشار له چیغو جوړ شي
تجربه یې د عشق نه وه په اتکل تیروته ځکه
اور له لرې ښایسته وی ، وچت غر له لرې ووړشي
د مین په زړهٔ دی کیږده د تاوده ئظر یو بل داغ
په لنبه گوندی د سوی پتنگ سوی زړهٔ څه سوړ شي
تخیل دی روغ جنت دی زه که عمر ورته غواړم
تصور کی یې ورانی وی چې مین له ژونده موړ شي
د « پسرلی » غزل به شي خو ته به نه شي ورنه جوړه
د کوهکن تصورات که د بهزاد په لاس نچوړ شي

خوت - ۱۳٦۵

---

له ډیره لطافته په نخرو راځي بهار
د ناوې غوندې ښې ته په ورو ورو راځي بهار
هر بوټي سر له خاورو را جګ کړي پورته ګوري
د وریځو غوندې ښایي چې په غرو را ځي بهار
د ښار په کڅلیځونو کې یې مه غواړه همدمه
په دښتو مسخولیږي ، په میرو را ځي بهار
له سروي یې ښه پوښتې ، له لغړو ونو پوښته
په شان د کږمانو په سپیرو را ځي بهار
جمال وي له جلال سره مدام غاړه غړې
د غرونو غیږ ته لوېږي په درو را ځي بهار
نظر چې یې وچت وي له خزانه ښه بیریږي
دا هره شپه په شوخو ستارو راځي بهار
د حسن تصور به وي د وریځو په ډولۍ کې
ماښام چې د اسمان په کنارو راځي بهار
د هر بوټي په ښانګو کې چې خاندي سل ګلونه
ښکاریږي د بلبلو په زارو را ځي بهار

۱۳٦٦ - ۱ - ۱۰ - پیښور

---

درسته شپه چې مې بې کچه سمندر د زړه په شور و
د کسات د جذبو تا و ، د غربت د احساس اور و
راشه داغ مې په زړهٔ کیږده ، سزاوار یم د داغونو
ستا له داغه هم لوګی شم ستا هر داغ د زړه ټکور و
چې په وره کې دې ساه ورکړم دا مې ولیکه په قبر
دلته هغه مین ښخ دی چې یې زړه کې زما ګور و
آواره ښاغلي د ورو یو رسوو ځان سمندر ته
که بندونه چیرته مات شوو ، که را پاته د زړه زور و
هر دیوال ته چې ور جوخت شوم ، مختورن شوم لکه سیوری
د بل سیوري مخ توری ده ، د بل سیوری واړه تور و
دریوزګر نه یوو که غواړو د هر چا د کاله خیر
زموږ هم یووخت یارانو ، داسې کلې داسې کور و
زمانې یوو واړه کړي ، شرایطو ساړه کړي
دا ایرې هم سرې لمبې وې ، دغه سکورهم یووخت اور و
عالم ځای و د تیریو سمندر مې هم چې ولید
نیز د نیز په سر ور اوښت ، موج د موج په اوږو سپور و
د شیرین حسن په تورو ځیزو تیزو کې څه غواړې
د کوهکن په تصور کې ، د « پسرلي » په زړه انځور و

۱۳٦٦-۲۲-۱ - پیښور

چې لکه ستوري شل په شل پسې ځو
خدایزده چې مومو بې که تل پسې ځو
خضر طریق د ګمراهانو نه وي
لکه موجونه په یو بل پسې ځو
فرار له ژونده وو فرار له مرینې
ځو لاس تړلي په اجل پسې ځو
خود به مو خیال په سلو لارو درومي
چې په خواره واره وربل پسې ځو
کاروان سالار مو لیوني هوس دی
لکه وختونه په رنګ پل پسې ځو
مشکل پسند یې کړو د حسن بهار
د بناپیرو د باغ په ګل پسې ځو
کمال د عشق و ، که کمال د حسن ؟
سیوري او لمر شو یو په بل پسې ځو

۱۳٦٦- ۲۳ - ۱ ـ پېښور

---

که وژنی ، که پرېږدې مې د زړهٔ سره مه پوښته
زما د زړګی سره ! ما له سره مه پوښته
له سوېو زړونو وپوښته اثر د کرشمو
د میو د مستئ له شیشه ګره مه پوښته
چې مځکه ورته سره شی هم په سر ځی هم په پښو
پرواز ته چی یې ګورې له شرره مه پوښته
د هجر له تورتمه وی مهجورستوری خبر
د تورو شپو کیسه له رونه لمره مه پوښته
چې سل خمه نشه ورکوی پټ نظر مین ته
نو نور یی د ښکاره غر له اثره مه پوښته
پیغام یې مګر راوړی روږدی زړهٔ درنه په خپله
د حسن له تاتوبی یې کوتره مه پوښته
په کږه وږه برهمنه که څه ورته وي صنم ته
د ناز له نازکیو یې ډبره مه پوښته
چې تش ګړی په سرو لاسونو ډك شي له شرابو
بیا لمر هم د ګودر له مازدیګره مه پوښته
په غرنوېه دښتونو می عشق پلونه غوړولی
پسرلی شوم د« پسرلی »له بام ودره مه پوښته

۱۳٦٦-۱-۲٤ - پېښور

---

ماچی له غمونو سره وژ ړل
څریکو له زخمونو سره وژ ړل
بیا می ددردونو کره شپه وله
ډیر می له دردونو سره وژ ړل
چا وې چی ژړا وی د کمزوری کار
وریځو هم له غرونو سره وژ ړل
مرې اوښکی می تویی په مرو هیلو کړې
شمو له قبرونو سره وژ ړل
تا به خدایزده چا سره خندلی وی
ما دی له یادونو سره وژ ړل
ورځی می غربت کړې د محشر ورځی
شپو می له قرنونو سره وژړل
څه اور په بڼ بل کړ د بلبل نوا ؟
پرخو له گلونو سره وژړل
تا چی جامه سره کړه له حسرته گل
ږنبته له رنگونو سره وژړل
ما چی وې « پسرلی » دی په خاټولو کی
سوي رڼه له زړونوسره وژړل

۱۳٦٦-۱-۲۵ - پیښور

---

لاړې زه دی یو عالم الم ته تنها پریښودم
گوره دا دی چا ته لکه پل په صحرا پریښودم
نور دی تل په تاسو مبارك وي د خوښۍ ژوندون
پرې می زدۍ یارانو چی بیدرده اشنا پریښودم
زړهٔ می د آرزو ډولۍ‌ړد وصل سمندر ته وړه
زه لکه د سیل خلی په غاړه دریا پریښودم
لاړه چی په زړهٔ د بې دردانو کی څه سا پو کړي
زه یې د شپیلۍ په زړه کی غوټه نوا پریښودم
راغله لاړه تیره شوه چی هیر یې وم که هیر یې کړم
زه یې منتظر په ورکه لار د وفا پریښودم
څومره له پښو سپك وو لکه ابر نو بهار د ژوند ؟
زه یې د غاټول غوندی په وچه بیدیا پریښودم
حسن می ژوندون کړ « پسرلیه » نذرانه د عشق
زه یې لکه شمعه د مزار په ژړا پریښودم

۱۳٦٦-۲۳-۱ - پیښور

---

جلوه یې د ښایست چی له نقابه څڅیده
رنا د لمر د وړانګو له مهتابه څڅیده
یوه شپه می کړه په خوب کی ستا له لاسه پیاله ښکل
مستی می چی را ویښ هم شوم له خوابه څڅیده
د لطف په محفل کی یې پوښتنی کړم لوګی
خوله د خجالت می له جوابه څڅیده
ظالمې ! واهه بل اور ته ببوزی تسلی
چی اوښکه می د رزه له اوم کبابه څڅیده
بیګاه چی یې خوږو خبرو وایستم له سده
نغمه د ځوانی مینی له ربابه څڅیده
چی سترګی یې را واړولې حسن لولپه کړم
ګناه د ظالم حسن له ثوابه څڅیده
حیا چی یې پرمخ باندی تنکۍ خوله کړه ماته
د شمی رونه اوښکه له حجابه څڅیده
« پسرلی » و ماوې حسن په سرو سترګو ژاړی څوك
ورو ورو بیګنۍ پرخه له ګلابه څڅیده

۱۳٦٦-۲۳-۱ - پېښور

---

چې سنکلې په نظر زما نظر وغوړاوو
د اوښکو په تالاب یې نیلوفر وغوړاوو
مشکل و چې بې مینې په سپېره صحرا کې ژوند
د قو غوندې می زړهٔ په سمندر وغوړاوو
ورانګه که نه کړې بخت ، ورشه اوبه شه زما زړهٔ!
بساط د کرشمو یې په ګودر وغوړاوو
ملا نه وم خو داسې وی آداب د محبت
که هیلو می په نیاز ورته څادر وغوړاوو
هیڅوك د محبت په ژبه پوه نه وو افسوس
سل ځایه می د زړه څیرې دفتر وغوړاوو
وزمه چې ستا د حسن په ګلونو ښوئیدله
ما هم لکه خاتول ورته ځیګر وغوړاوو
ورکه چې مغنی کړ د سرو شونډو تصور
بل کیف یې د شرابو په ساغر وغوړاوو
د یو بل په نوا د حسن تنده ماتوو
دا نوی باب د وصل قلندر وغوړاوو*
په مُحکه می د خیال پلونه نور مه وهه « پسرلیه » !
د ستورو شش محل کې می بستر وغوړاوو

---

* - د ساهو لیکوالو ادبی غونډې ته اشاره ده چې مشر یې قلندر مومند و .

۱۳۶۶-۲۳-۱ - پیښور

---

ساده پښتنه ، د زړونو شپنه : خوږه موسکا یې په گل کې نښته
د توری کیږدۍ‌د سیوری خوند یې د ستوریو په شیش محل کې نښته
د پت په غروکی روزلې نگاه ، د ناز په چینو کې ولې نگاه
سپیڅلې سترگی ، سپیڅلې نگاه ، چی دا یې لری په بل کې نښته
ښایست راوړې یوه ملغلره ، تر خپل تصور هم ډیره غوره
د هسك د پیغلو په سپینو غاړو ، د بحر د زړهٔ په تل کې نښته
دوه پاکی ښکلې ملالی سترگی ، دوه شوخی مستی غزالی سترگی
چی رم ورنك یې غزال نه لری ، چی کیف و خوند یې غزل کې نښته
پښتون حسن ته ، یی څوك ووایی ، چی واړوی لږ څه برندی سترگی
په څیره څیره لا چا ته گوری ؟ ویشتلی زړهٔ می مورچل کې نښته

۱۳٦٦-۲٤-۱ - پیښور

---

په خیال کی می هم چی له ما سره تله
له صفا سره مله - له حیا سره تله
پښتون حسن یې خدای کله مه کړه تنها
لاس تر غاړه د پت ، له وفا سره تله
گڼه ورا وه د ناز ، نه رقیب ، نه غماز
د عشوو په حقله کی ادا سره تله
له خپل سیوری هم دې چی تله پیڅی نغښتې
خو سودا یې د عشق له هر چا سره تله
راغله - لاړه - شوه تیره د سترگو په رپ
د شهاب په سرعت ، له برېښنا سره تله
د جنون په صحرا ، لیونی مینه زما
د مجنون په انداز ، له لیلا سره تله
حیف چی رانغله بیا ښئیدلې زلما
لکه زانې چی تله له غوغا سره تله
یوه نغمه وه پرته په پردوکی د ساز
یوه نشه وه د ژوند له صهبا سره تله

۱۳٦٦-۱-۲۵ - پیښور

---

ورګورئ چې څنګه شوخ و شنګه ځی ؟
واوری ویلی شوې له سالنګه ځی
څم ورڅخه زړهٔ چې مې پرې وشندو
ځي ارادتمند هندو له ګنګهٔ ځي
لیږ خو مې نوا ته کیږده غوږ د زړهٔ
بوی د سوی زړه مې له آهنګه ځي
مینې یوځای کړي بیلیدای نه شي
سیورې دی یم سیورې خو له څنګه ځي
مینې ته مې ګوره رنګ مې څه ګوری
عطر د ګلونو له لونګه ځي
یوه لحظه بې خوبه نه کړې زما خیال
فکر به دې څنګه له پالنګه ځي
پس له عمره راغله کاشکې ووایی
شپه د قدر څنګه راغله ، څنګه ځي
یاد د هغه حسن « پسرلی » کړمه
رنګ یې د ګلونو چې له رنګه ځي

۱۳٦٦-۱۲٦ - پېښور

زړهٔ سوځی لکه شمه که پیرزو یې ومنی
د زړهٔ مجبوره نه ده چی بې خو یې ومنی
د حسن په پښتو کی نه جرگه وه نه یې تول
ما اوښکی پرې جرگه کړې چی پښتو یې ومنی
د هیلو غزونې می ناله شوه پسې ځي
خو خدایزده چی د ناز په تقاضو یې ومنی
د ځان په غم کی نه یم اندیښنه می ده دمیني
تر هغه به لوگیږم چی تر څو یې ومنی
دستور دی د حسینو چی کوهکن ورکوي ساه
شیرینه ورته راشي ، په سلگو یې ومنی
چا وې حسن مغرور دی ، چی زړهٔ هر ځلی ورووړم
د حسن یې منظور شي په لیمو یې ومنی
دحسن ژبه بیله وی د میني ژبه بیله
آرزو د زړهٔ نغمه کړه چی درخو یې ومنی
« پسرلیه » تخیل می په خدمت کی دی ددې
ځي پورته چی د هسك په فرشتو یې ومنی

۱۳٦٦-۱-۲۷ - پیښور

---

کاشکی یوازی می دا زړه وای چی ورو ورو و ښخېد
واړه بدن می لکه شمه له لیمو وښخید
چی په لوی زړه می وو دروړی سپمولی نظر
حیا می واړولي سترګی ستا په پښو وښخید
خدایزده بیواکه می له خولي څه خبر وښوئیده
چی می امید د التفات لکه آبرو وښخید
یقین په پته به یي وښتي د زړه په ژبه
د میو ښاځکی که دی شیخه په جامو وښخید
غواړم چی هر یو یي کړی مینه دُر دانه د ادب
دا هر یو ښاځکی چی په زړه د ناز له ورو وښخید
لکه په اوسکو د کباب لمبه می لا تازه شوه
صبر اوتوان چی می د مینی په لمبو وښخید
په تصور کی دی راتلي هم « پسرلی » وو د ژوند
سحاب د لطف په ګلونو - په اغزو وښخید

۱۳٦٦-۱-۳۰ - پیښبور

---

چی احساس یې د زړهٔ غوږ ته په محفل کی خلی ورورې
هره ساه د ژوند له لاسه لکه شمه اور په سر وړی
د ساقی تر سترګو ځنکه دوه جهانه لوګی نه کړم
درد او غم می وړی په لطف ، فکر او هوش می په ساغر وړی
د زړهٔ لیك به چا ته ورکړم ، څوك به دروړی د زړهٔ پانه ؟
سری لمبې دیٔ سرې لمبې به ګوره ځنکه نامه بر وړی ؟
مین زړهٔ به دی د حسن په وفا ولی شکمن وی ؟
چی سیندونه خپل وژلی تر وروستی مزله په سر وړی
ما د یو دیدن له پاره ژوند قبول کړ په ساړه زړهٔ
بار د ډیرو یخو واورو د چینو له پاره غر وړی
واړه شپه چی می بهار لید د غوټیږغوندی په خوب کی
پاڼی پاڼی سحر یووړم که می ستا کوڅې ته دروړی
د وختونو مرك ومیر ته تنکیږهیلی وارخطا شوې
د ماښام جنازه ستوری ، د سحر جنازه لمر وړی
وی د هسك نظر په سپکو خو چی سپك وو درانه نه شول
ډك پلو وریځ له زرو هر ماښام او هر سحر وړی
ستا د حسن په لمن به ګوره داغ وی که به نه وی
چی پسرلی شي او « پسرلی » دی لاله زار ته سور تتر وړی

۶٦ - ٢ - ٨

----------

دا مى په خيال كى سمنبر اوړي
كه په څپاند بحر كى لمر اوړي ؟
له سر تر پښو يې د ښايست ملكه
ولى دى سترگو ته نظر اوړي ؟
ساقي ليمې دى لړ په ورو اړوه
گوره په لاس كى مى ساغر اوړي
كه د كوثر اوبه شي ناز دځه ښكلې
څه به يې كړم چى مى تر سر اوړي
په ما وي تل د غريبانو ماښام
ژړ لمر شي زړهٔ مى په خيبر اوړي
داسى به چا وي ترې آرام اخيستى
چى اړخ په اړخ لوى سمندر اوړي
انسان يې مه گڼهٔ تش سيورى يې دى
چى په سحر په مازديگر اوړي
زړهٔ چى ورځي د پستې غيږى په شوق
لكه د سيل اوبه په سر اوړي
بيا به « پسرلى » او د كوكچې غاړه وي
چى په څپو كى يې سره زر اوړي ؟

۶۶ - ۲ - ۱۰

---------

ای د حسن نوبهاره چی هنداره گل زمین کړې
وچ نهال یم گوندی ما هم په یوې نغښتې موسکا شین کړې
ما په ستورو کی ته غوښتې له خپل زړۀ نه خبر نه وم
د ښکلا تر لطف کرځم چی یې داسی دل نشین کړې
تنها ما دی له گلزاره په زړۀ خار نه دی راوړی
ستا د مخ تر جلوو کرځم نظر غوړه د گلچین کړې
ته زیبا یې ته زیبا یې واړه سر تر پښو ښکلا یې
خو حیران یم داسی حسن څنگه مینی ته بد بین کړې
تور ویښته می ورته سپین شوو،خو خبره سپینه نه شوه
توره بخته که ته سپین شوې ما به هم څه ورته سپین کړې
لیونی، آرزو ته گوره ، په څه لوی زړۀ درنه غواړم
چی انگار د سوي زړه می د ښکلا د خول نگین کړې
تور لیمه او تور بانړه یې ما لانده نه دی لیدلی
دا سنگین زړۀ یې خاونده لر. په ما باندی حزین کړې
په گلونو چی منظورکړې د « پسرلي » د رژۀ زخمونه
هغه ساه می دی وروستۍ وي ، هغه دم می واپسین کړې

۱۱ - ۲ - ٦٦

---------

هسی نامه توره د مین په سولو ښکلې وي
شمه سرو لمبو ته خپلو مړو اوښکو نیولې وي
زړه می ستا له سترګو ستا په زلفو کی پناه اخلي
زرکی په وښو کی د شاهین له ډاره غلې وي
هیلی زړهٔ ته راشي خو په شمار یې کله پوه نه شوم
دا وحشي کوتری چی څو شمیرې الوتلې وي
زه به د شکوې خولهٔ په جوړه قلفونو وتړم
تا که می د زړهٔ د پرهرونو خولې ګنډلې وي
څه می پوښتې حال د زړهٔ چی سترګی ښکته واچوي
واورو لاندی مه شې چی له غرهٔ را ښوئیدلې وي
څومره چی یې خیژی تر پاسته مخ د حیا خوله
هغومره تناکی می د زړه پر مخ ختلې وي
ستا د تصور په پله می هیلی سر را پورته کړي
کله چی وزمو په شنو وښو سینه موښلې وي
ستا د خولګی مینه می «پسرلی» کړي چی را یاده شي
یوه لمن غوټی می په خاطر کی غوړیدلې وي

۱۷ - ۲ - ٦٦

---

شمې ته گوره د نړۍدغه آئین پاته دی
سل یې وژلی لا یې مخ د حسن سپین پاته دی
څوك به له داسې حسنه څه وکړي د زړه پوښتنه
چې یې له نازه د مخ خال هم په زړه شین پاته دی
د ښکلو زړونه وو د تیزو پښوا هم ، وگوره
په بیستون کې چې کوم نقش د شیرین پاته دی
د ناز په لمسه مې په کاڼو یاره مه وله زړه
له ټوله ژونده را ته بس دا یو نگین پاته دی
تا که د سیورې غوندې درست عمر در پورته نه کړم
لا مې ارمان دي تا په در کې د جبین پاته دی
ظالمې دومره ژر په وروڅو څادر مه ټیټوه
چې د دوو وږیو په امید دی خوشه چین پاته دی
اوس څه مغل مغل کوو چې تر موږ ورك دي مغل
نه دی اورنگ لښکرې شته نه تمو چین پاته دی
د مدنیت په مخ مدام وي د وحشت یوه زخه
پرون صحرا وه د گوبي ، نن کرملین پاته دی
چې ورته ستا هره ادا ښکاریږي روح د حسن
« پسرلی ». دی څکه ډیر په مینه کې خوشبین پاته دی

۶۶ - ۳ - ۱

---

لاړم د مجنون په پاتا کښیناستم
گوښی په تبجنه صحرا کښیناستم
ښکلیو چی د راز گودر ته شا کړله
لمر شوم او د غرونو تر شا کښیناستم
واك خو د لمبو وي د وږمو په لاس
تا ته که را پاڅیدم یا کښیناستم
مه می غورځوه په بې مهري له ښو
ورو ورو لکه مسته دریا کښیناستم
عشق به مو منزل ته رسیدلی وي
زه چی لکه بانگ د درا کښیناستم
ویلی لکه شمه په ولاړه شوم
دا که یې په خوا کی زه لا کښیناستم
پل پونده دی یو ځای هم ښکاره نه شوو
زر ځایه په لاره کی ستاکښیناستم
چنگ شومه خو خولې ته دی نژدې نه کړم
سوز شوم او د نی په نوا کښیناستم
اوښکو می « پسرلیه » ټیټ کړم مځکی ته
زه هم لکه گرد په وریا کښیناستم

## ٦٦ - سرطان

---------

غواړم هره خواګلونه وخاندي
وخانده چی بیاګلونه وخاندي
لږ چی په لیمو کی را ته مسکه شې
ما ته د نیا ګلونه وخاندي
شل بهاره راغلل لاړل څه یې کړم
کاشکی مې اشنا ګلونه وخاندي
هومره خو می ژوند ته ړنوه لیمه
لکه د بریښنا ګلونه وخاندي
راشه د مجنون پوستنه هم مه کړه
پریږده دبیدیا ګلونه وخاندي
هرهٔ شپه دی سر په تصور کی ږدم
ما ته تر سبا ګلونه وخاندي
ستا د راتلو غږ که « پسرلی » نه وي
څنګه نیمه خوا ګلونه وخاندي

۱۳٦٦ - لړم

---------

هره خوا د غم نیزونو وړی یم
غم نه ستړی کیږي خو زه ستړی یم
خیال می چی راوړي ګلونه کال و سر
زه با د الفت د ونی زړی یم
څه خوند به می واخلی له نغمو څخه
تار یم خو بې حده شان اومړی یم
توره پرښه یم د پولادي غرونو
چا درته ویل چی اوسپنځړی یم
خپله جنازه وړم د لحد په خوا
څه عجب بې کسه غوندی مړی یم
ور به می بیدیا په نیم جهان نه کړم
زه هم د مجنون د کاله غړی یم
هغومره می پیښی ستړې کړې دي
څومره چی زه پیښو ستړی کړی یم

۱۷ - ۱۲ - ٦٦

----------

چی ځوانی وه ، چی مستي وه ، د زړه خوا تر وتازه وه
ورځ د حسن انګازه وه ، شپه د مینی خمیازه وه
ژوند می پټی سترګی تیر شو د زلما په میکده کی
مست ساقي او ډك خمونه ، نه دربان ، نه دروازه وه
ژوندون څه و ؟ پس له عمره ایله اوس دومره پوهیږم
چی اخیستې می په خپلو اوږو خپله جنازه وه
د جهان ښایست می ولید که عشق نه وای هیڅ به نه و
د بلبل د زړګی وینه د ګلشن د مخ غازه وه
د هوس وښو کی پټه ، د غفلت تر دوړو لاندی
دا زما جنډړیـه زما د ویران شوي ګور خازه وه
د ژوند کوم الم به ژارم ، کوم ستم به د وخت هیر کړم
د غمونو د دردونو نه څه حد نه اندازه وه
دا احساس ځبلی زړه به ستا په مخ کی ټوك ټوك کیږدم
که ادا دی پري رضا وه که د حسن اجازه وه
په مړو هیلو می « پسرلیه » اوښکی څنګه تویی نه کړم
دا د فکر وقایه وه دا د ذهن شیرازه وه

۱۳٦۷

---

ځنګه به ځوږ واخلم له ځوږمنه زړهٔ
دود شي مګر ووزي له ګلخنه زړهٔ
زه په زړه خبر نه یم او زړه په ما
کرځي لری لری می له تنه زړهٔ
ځومره وي له ستونځو ډکه لار د عشق
زدي چی می هر پل په بله غنه زړه
حسن قساوت نه دی ، نو ځنګه بت
وړي په سنګدلی له برهمنه زړهٔ ؟
سخته دامنګیره وی د حسن خوا
نه راځي د زلفو له ختنه زړهٔ
ښایی بیدردان به یي کړکچ کښي
غورځوي مینا می له دهنه زړهٔ
ځاله به له منی بلبل پریږدوي
ځرنکه به اخلي له ګلشنه زړهٔ
غرونه پرې پراته دي پرې پراته دی وي
نشم اخیستلای له وطنه زړهٔ

۱۳٦۷

---

یا به تللی خوشحالئ بیزته ستنيې کړو
یا به شمی د قبرونو میلمنيې کړو
د ویارونو تاریخ پاڼی پاڼی مه شه
د همت زغری یې راشئ دوتنيې کړو
چی ښایست کی درنښت په ناز کی نیاز وي
خپلی تاندی تقاضی به پستنی کړو
د رفعت په اسمانونو به زډو ځالی
که د فکر له ښنبو ماتی څولنيې کړو
بیا مو ټینګې سدونه نه شی ټمبولای
چی په یوه مرکز را ټولی پرګنيې کړو
په آزاد وطن کی کیږی انساني ژوند
پیرزوینی چی د هیلو کورینيې کړو
ثمره به یې تر حشره سرخ رویي وي
چه د پت ونی د زړه په وینو شنيې کړو

۲۰ - ۱ - ٦۷

---

سوی قیس له درده چې صحرا په غیبز کې ونیوله
ګرد د سترو تلو یې لیلا په غیبز کې ونیوله
راغله او ناڅاپه مې لندو سترګو کې واوښته
تا به وې سپوږمۍ وه چې دریا په غیبز کې ونیوله
دود مې د مین زړګي له سره په حسرت وخوت
سترګو مې د حسن یوه دنیا په غیبز کې ونیوله
زه به هم آخر په سعیه رامه کړم پري د خیال
سپینه پلوشه که د لمر چا په غیبز کې ونیوله
دې مې را نه پام او فکر هر څه اړولی دي
ما یې د خورو زلفو سودا په غیبز کې ونیوله
شپو کې د فراق چې تصور ته لوګومه زړه
ته به وایې توري شپې رڼا په غیبز کې ونیوله
اوښکې مې یوه یوه پریږدي نن د ښو لمن
ستا مستو لیمو چې استغنا په غیبز کې ونیوله
یو چمن ګلونه مې په زړهٔ وغوړول مینې
شونډو یې چې پټه خولهٔ موسکا په غیبز کې ونیوله
بیا دی د ښایست جلوې په هر لوری شیندلی دي
څکه لیوني زړهٔ هره خوا په غیبز کې ونیوله
مسته د « پسرلی » ورمه چې رغښته په ګلونو کې
ما هم د زړهٔ شوخه تمنا په غیبز کې ونیوله

۲۵ - ۱ - ٦۷

---

شور چې د بلبل گل و نسرين په غېږ کې ونيسی
دود مې د حسرت مه و پروين په غېږ کې ونيسی
څو به يې فرهاده په تنکی زړگي کې وساتې ؟
غر بويه چې نقش د شيرين په غېږ کې ونيسی
هر څومره شوخي چی لري مست ليمه را بوله يې
زړهٔ چې سمندر شي اباسين په غېږ کې ونيسی
داسی يې د وروڅو د بڼو په خاطرو يم شاد
لکه چې ډك وږی خوشه چين په غېږ کې ونيسی
زه يم چی دا سره سکروټه زړهٔ په خوا کې گرځوم
بل به څوك په خوښه دا ناورين په غېږ کې ونيسی
غواړم چې ازغی شوای د هوس تر زړهٔ يې وختی
څانگه چې د گل کله گلچين په غېږ کې ونيسی
کنده که يې ونيسی په زړو کې رنگين خيال
ياد چې د کوم زړهٔ لکه نگين په غېږ کې ونيسی
خپل همت که نه شي پريوتليو وته لاس د غيب
تل مگر د بحر ته نشين په غېږ کې ونيسی
خيال مې « پسرليه » را نه ونيو مستغني حسن
داسی لکه غرونه چې تمکين په غېږ کې ونيسی

۶۷ - ۱ - ۲۵

---

بیگاه چې بیا د لیوني زړه په ارمان پسې تلم
د لارې گرد شوم او د مصر په کاروان پسې تلم
له مځکې وویشتم بدمرغی ویښیدا له خوبه
بلند پرواز وم لکه ستوری کهکشان پسې تلم
ښه وم که نه وم ، د هر چا په پلهٔ ختلی نه یم
چار او ناچار لکه مضمون په خپل عنوان پسې تلم
ړندو هم لاري د سازش په امسا و موندلې
خود به پرتلم چې زه اوس هم په وجدان پسې تلم
ذهني کجي د عملي کج روي لار پرانیزي
د تیر په شان به کږیدم چې په کمان پسې تلم
که مې د بل په پیروي کې مخ توري نه لیدای
زه به دسیوری غوندی تل په بل انسان پسې تلم
« پسرلیه » هغه د لتون ورځې مې هیرې مه شه
چې مخ په دښت او بیابان د باد په شان پسې تلم

۱ - ۲ - ٦۷

---

شمه یم درست عمر له خپل اوره سوځیدلی یم
خپل زړهٔ خوږولی یم اوخان ته خوږیدلی یم
ته مې د شبنم په سترګه هم پاکې ته نه ګوری
زه لکه شهید د زړهٔ په وینو لمبیدلی یم
ویخښه چې مخ ته دی په ګڼ محفل کې وړتم
ډیر تر تاندو هیلو لکه طفل چورلیدلی یم
نه ده د غرور لمن مې حسنه د پریښوو نه ده
هر څو لکه کاڼی تر کمره را رغړیدلی یم
تاك نه یم چې مست شي په اوړو یې چیله واړوي
هیڅا پورته نه کړم لکه سیوری غزیدلی یم
ډك توپك مې مه کړې که مې ګرځوي په غاړو هم
خیر دی که دې پښو ته د وړانګو غوندی لویدلی یم
ګرد نه یم د لاری چې د چا لیمو ته ولویږم
رنګ یم د هستی په مخ له شرمه لټیدلی یم
څو چې مې پخیږي عمر هومره مې خوانیري شور
یو عمر د می غوندی په خم کې ایښیدلی یم
مینه مې ده خاوري په زړهٔ خاوري خړې اړوي
هر څو که د سیل غوندې ترې لاړم بهیدلی یم
څه به په غربت کې « پسرلیه ټولوم حواس
مینی مې د ګران وطن په غرو رغو شیندلی یم

۶۷ - ۲ - ۲

---

ستا د عشق صحرا ته چې د زړهٔ له ښاره تللي یوو
څنګه په هوس لکه د وینو داره تللي یوو
کوږفطرت مو نه وو مجبوریٔ د شرایطو وې
داسې چې کاږه لکه په غرو کې لاره تللې یوو
ژوند نه چې کنار د عافیت د مستی روح اخلي
بیرته د څپو غوندی له هر کناره تللي یوو
خاوري مو په خوله شوی یا د زړهٔ وینی نور هیڅ نه وو
چیرته چې د تیر غوندی د بل له پاره تللی یوو
خدای خبر په څه تمه په څه هوس راغلي وو
بیرته چې عدم ته د ژوندون له ډېره تللي یوو
زړهٔ کې چې د مینی تاو سریزي ګړي مخ توری ژوند
سرهٔ وو خو په تاو پسې له سرهٔ انګاره تللي یوو
هغه د څوانی شور مې « پسرلیه » رانه مه غواړه
اوس لکه نغمې له خپل اومړي تاره تللی یوو

٣ - ٢ - ٦٧

---------

اوس د مینی درده هغه حال ته رسیدلی یم
سیوری شوم له ضعفه خپلو پښو ته مې لویدلی یم
شور د جنون روح کړمه د غرونو چې په هر پړاو
زر ځلی پرتلی یم او بیرته لتیدلی یم
پام دی مګر نه و چې حیا اوبه کولم زه
څنګه دی سرخ رویه لکه بل څراغ لیدلی یم
خپل ذهن او خصلت یم په ژوندونی په دار کړی زه
پورته بې تنابه لکه ستوری ځړیدلی یم
ته پیغې در نغاړې لکه لمر د مازدیګر له ما
زه چې لکه سیوری په سینه در ښوئیدلی یم
تا نه بیلیدای نه شم وطنه زړهٔ زدی تا ته سر
زه چې لکه لاره په هرځای کی غځیدلی یم
هر انسان « پسرلیه » په بل شان و د انسان صیاد
څکه د هوسۍ غوندې له ځانه رمیدلی یم

٦٧ - ٢ - ٤

---

که ژوند پرته له مرگه بل انجام نه لري
عدم هم بی له ژونده بل پیام نه لري
د عمر په وروستو لمحو شوم دومره قدر پوه
په داسی زینو وختم چې بام نه لری
د هسك په تبسم چې غولیدلي غولیدلي
هغه سحر به کوم وي چې مابنام نه لري
د داسی مستغني حسن په لومو کینیوتم
له نازه چې خپل حسن ته هم پام نه لري
د جم په میکده کې و خم هم وچه خوله پروت
مینا یې ماته شوې ده او جام نه لري
د زړونو تنستې خو وي بس هیلی امیدونه
ډېری دی که زړونه دي چې کام نه لري ؟
د داسې چرخ په سیوري کې به څه وکړو آرام
چې ستوري او لمرونه یې آرام نه لري
« پسرلیه » گوره هغه درمند ځای نه دی جنت
دانې چې یې بې توله وي او دام نه لري

٦٧ - ٢ - ٥

---

پنډه د غمونو په سر بيرته وړم
تا ته سپمولی نظر بيرته وړم
راغلم جهان ځای د اوسيدو نه و
کډه په زيړي مازديګر بيرته وړم
ما وې ستا په لطف به مې زړهٔ ښه شي
دريغه نا ګنډلی پرهر بيرته وړم
حسن بانه جو وي ويريدلی يم
زړهٔ ته چي له ژبې خبر بيرته وړم
داسې لکه شمې نه بسمل پتنګ
ستړی نفس سوی ځيګر بيرته وړم
څوك د ملغلرو پيژندوی نه و
تل د سمندر ته ګوهر بيرته وړم
زه خو دې « پسرلی » يم ګله څنګه به
خپل شيندلي زر لکه لمر بيرته وړم

۷ - ۲ - ٦۷

---

بیګاه چې مې لطفونه یادیدل او خوریدل
ګلونه مې په ذهن غوړیدل او خوریدل
خواره څاڅکي د ورو شي ورو ورو بیرته سره ټول
په زړهٔ مې دی یادونه وریدل او خوریدل
د وصل په محفل کې مې بس دا ننداره وکړه
رنګونه په رخسار و ماتیدل او خوریدل
د ناز له تقاضو یې د زړهٔ ستړي امیدونه
کبلي شوو په صحرا کې رمیدل او خوریدل
دا ته وی که د مینې تبې وم لیونی کړی ؟
څه څه به مې تر سترګو ځلیدل او خوریدل
فکرونو وي اخیستی د وحشي مرغانو غاړي
د ذهن په فضا کې ټولیدل او خوریدل
یا دا د غربت شپې دي او یا هغه چې مستي وه
وختونه یو له بله شرمیدل او خوریدل
« پسرلیه » چې هغه د مینی ورځی را په زړهٔ شوې
یادونه یو له بله جاریدل او خوریدل

۶۷ - ۲ - ۷

---

عشقه ستا له فیضه چې هنر ته رسیدلی یوو
ښکلې واړه ښکلې وي دلبر ته رسیدلی یوو
حسنه یو نیمګړی الطفات دی راته روح بخښني
ورو ورو لکه سیوری د تا در ته رسیدلی یوو
مینی چې ور ګډ کړو په تولي د رڼو ستورو کې
غم دی نشته غمه چې لښکر ته رسیدلی یوو
شمو زړونه وخوړل خو یوه شپه یې سحر نه کړه
بیا هم موږچې زر ځلی سحر ته رسیدلی یوو
هغه وخت را نغلې چې په زړه کې مې موجونه وو
اوس لکه د سین شګې بستر ته رسیدلی یوو
عشقه ستا له فیضه مو د خیال لمنه ونیوه
موږ هم لکه پرخې آخر لمر ته رسیدلي یوو
اوس چې مو له حاله خبر نه اخلې پوهیږمه
ستا هغه کارونه یوو چې سر ته رسیدلی یوو
راغی « پسرلیه » د مستیو د توپونو وخت
یو موټ سپیلني وو سرهٔ مجمر ته رسیدلي یوو

۸ - ۲ - ٦٧

--------

نه یواځې اوښکې مې له غمه ځي
ټول بدن مې ورو ورو لکه شمه ځي
پاڅی د جرس له کم ظرفی نه شور
گرد د رهروانو له قدمه ځي
وي به چیرته گوری د مقصد پړاو
چیرې دا روان ستوري په جمه ځي ؟
زلفي یې ورزمو توښپلی ما چې وې
وریځی هوایی شوې او له یمه ځي
خیر که غوارې دا غواړه چې پوه نه شې
واړه عمر وینی له قلمه ځي
جام به یې تر حشره وي د زړه پولی
ځي دي که نور هر هر څه له جمه ځي
پریږدی « پسرلي » ته د صحرا لمن
چیرته به د مینی له حرمه ځي

۶۷ - ۲ - ۸

---------

د حسن په ليمو کې مګرناز پاته نه دی
د ژوند په هنر تون کې چې بل ساز پاته نه دی
د نن په سين لاهو ته خو د حال تسلي بويه
انجام لا په تيارو کې دی آغاز پاته نه دی
ماده شوه د انسان په ذهنيت باندې حاکمه
زخمونو څه غوړېږی چې ګل باز پاته نه دی
ګردونه چې د لارو وزر ماتی پريوتل
په دې سترې صحرا کې جنون تاز پاته نه دی
په چا به هنګامه بيا د ساړه غزني تودېږي ؟
محمود يې کډه واخيسته ، اياز پاته نه دی
په خپل ځان کې ورکيږي له رازدارو څخه ځان
له ځانه پرته پټ مګر بل راز پاته نه دی
په مرګ د زورورو ستم کش شي ستمګر
دا چا ويل کوترو ته چې باز پاته نه دی
عمرونه شوو چې نوی نغمه نه اورو د عشق
حافظ نشته « پسبرليه » که شيراز پاته نه دی

۸ - ۲ - ٦۷

---------

چې دی حضور ته بس د یوې نګاه په تمه راځم
ستا د دیدار د حسرتونو له عالمه راځم
که په ښایست دې څه در زیات نه کړم کمیزې به نه
د یوهٔ صدف ځان او ځیګر یم او له یمه راځم
ستا د محفل رڼا دې تش په ما موقوفه نه وي
په خولهٔ لمبه ، په سترګو اوښکې لکه شمه راځم
ګوندی وانهٔ ورم د حساب او د کتاب خبري
د مینی کورته د دنیا له بیش و کمه راځم
له یوهٔ دوزخ نه بل دوزخ ته چا پناه ور وړې ؟
زه د غربت ستم کدې ته له ستمه راځم
ساقی په یوې نیمې موسکا مې د زړه غم کموه
چې میکدې ته دی راځم کله له غمه راځم
مینی خیال باف کړم او خیالونو مې وزر را کړي
چې د وریځ غوندی یو شان په غرهٔ په سمه راځم
د « پسرلی » روح روانه سل بهاره در جار
یم نیم نیمشوره ست خو کړه چې خاطر جمه راځم

۶۷ - ۲ - ۸

--------

هغه بې حسه چې بې دمه په منزل پريوتل
لکه سيلونو وړي خلي په ساحل پريوتل
غم د هغو کوه چې غم لري او غم پيژني
که نه کورونه خو هم ډير د آب و گل پريوتل
بيگاه مې بيا سوي دردونه د زړهٔ وپاريدل
ځومره نارامه ماشومان وو په مشکل پريوتل
ته راغلې لاړې او را پاته حسرتونه په زړهٔ
لکه دلاری خړ گردونه په محمل پريوتل
چې هر هوس مې د زړهٔ خواکې څه را پورته کړ سر
يو يو مې ليد د ناز په پښنو کې د بسمل پريوتل
راغلو دنيا ته بيرته لاړو نه څه کم شو نه ډير
بس يو څو څاڅکي شوو له يم سره شامل پريوتل
چا ته به څه ورکړي د آس په تمبولى کې مستى
د آبرو څاڅکى په کچکول کې د ساحل پريوتل

۶۷ - ۲ - ۹

--------

آخر یې عشق دومره حساس کړمه چې ناز یې اورم
که په حیا یې هم رنګ الوځي پرواز یې اورم
اوږده بانه یې چې یو بل سره خواله کوي پټ
تر رنجو ښه ورنه خبرېږم او پټ راز یې اورم
زړهٔ ته مې نه لوېږي چې حسن دي وي دومره خشن
چې هره خوا د مستو سترګو تاخت وتاز یې اورم
له پاکه حسنه له سپېڅلي ښکلا لرې نه ده
زړهٔ یې منې چې د سپېڅلي حسن اعجاز یې اورم
په هومره ناز برسیره حسن بې نیازه نه وي
چې سترګې زړونو ته ور اړوي نیاز یې اورم
زړهٔ مې د زلفو په ځنګل کې را نه واړاوه مخ
پته یې نشته چې غوږ ږدم یو حزین ساز یې اورم
مینه هنر ده د هنر عمرونه ډېر اوږده وي
« پسرلی » دی تللی وي د سوي زړهٔ آواز یې اورم

۶۷ - ۲ - ۱۱

----------

زړه چی په مینه کی کامل شي مشکل نه پیژني
-حاځکی چی دُر شي بیا نو بحر او ساحل نه پیژني
په پله د هغو ره روانو مینی پاځولم
چی لکه ستوري تل روان وي منزل نه پیژني
د عافیت گودر له مستو ځپو چا پوښتلی
له مجنونانو یی څه پوښتې عاقل نه پیژني
پتنگه سوځه ، ایره کیږه ، تقاضا ده د ناز
بله ډیوه د خپلی مینی بسمل نه پیژني
مجنونه دښتی چی در نغاړي دومره پام خو لره
د لاری دوړي دی د حسن محمل نه پیژني
زړهٔ به په حشر کی د کومی ادا پیځه نیسی
دا بیگناه مړی چی دلته قاتل نه پیژني
زاهد دی وایی ښکاره کفر دی له حسنه انکار
« پسرلیه » ډیر دي چی لا حق او باطل نه پیژنی

۱۰ - ۲ - ٦٧

---------

نه په گل خبر شوو نه له باغه پوهېدلی یوو
خدای خبر چی ځه له دې دماغه پوهېدلی یوو
غرونه وو ، پیچومی وو ، ستړیاوی وې ، مزلونه وو
دومره د دنیا له دې ایلاغه پوهېدلی یوو
څومره چی یې اخلو هغه هومره بې خودي راوړي
دا قدر دی پوهې له اياغه پوهيدلی یوو
خاوري به شي زړونه خو داغونه به يې خوا کی وي
داسی د ريدي د زړه له داغه پوهيدلی یوو
نور په بیدردانو شیندي ، سوځي پتنګان د عشق
ځه چی موږ د حسن له ځراغه پوهيدلی یوو
چیرته به ځوك ساه جوړوي ؟ ځای د آسایش نشته
ځي چی د پسرلی وږمه له راغه پوهيدلی یوو
ځه گرځي « پسرليه » په موهومی خوشحالی پسې
دا هغه هما ده له سراغه پوهيدلی یوو

۹ - ۲ - ٦۷

--------

شیشې د رنړو برخو که بلبله ماتوي
زما د رړه شیشه مینه په خپله ماتوي
ماهي ورځخه جوړ کړ د مژګانو تصور
ازغي به می په زړه کی لا تر کله ماتوي
زخمی زړهٔ می ګنډم د ناقابل جراح په لاس
چی یوه ستن یې ایستلې نه وي بله ماتوي
نهال به د امید په زړه کی ځنګه لویوم ؟
ظالمه استغنا یې له اوله ماتوي
که کار یی د نارامه حسن نه وي ماتول
رنګونه په خپل مخ له څه کبله ماتوي ؟
نګاه ته به یې یو نظر هم څوک وتړي زړهٔ .
سنکلا هر څوک له دې پاخه مورچله ماتوي
مشکل مشکل کشا شي « پسرلیه » کله کله
پوښتنی د ځپو ګوره سین په خپله ماتوي

۱۲ - ۲ - ٦۷

---------

ستا د ناز په محفل کی می سوې نګاه له لیمو تر بنو له حیا نه راتله
د نیاز په لیمو شرم خاوري ښیندي که نه دومره خو ماته ژړا نه راتله
تمبیدلې نوا می له خولې زړهٔ ته بیا لکه ښکلې ماشومه شرمیزی له چا
د مجبور زړه د عجز و زارئ په سلا په تشویق، په ترغیب، تسلا نه راتله
نا اشنا و محفل ، نا اشنا یې صحنې ، نا اشنا یې غمزې ، نا اشنا یې عشوې
چی به وکتل ماته په کوم نظر دې هغه شانته نګاه به یې بیا نه راتله
فرصتونه له لاسه د باد غوندی تلل خو پرون او سبا یې له یاده ځندل
هم په شمار و ، ویل ، هم کتل سپمیدل تا به وی چی له سره سبا نه راتله
نګاه نه وه یاره جریان و د نور له تورولیمو یې فوران و د نور
باران و د نور او طوفان و د نور په دومره وسعت به بریښنا نه راتله
د دریا په سرور ، د سپوږمۍ په تمکین ، د وږمو په دستور ، د زمان په آئین
بیستون ته د عشق راغله لاړه شیرین ملکه وه د حسن او په غلا نه راتله
« پسرلیه » افسوس چی شرر وي فرصت د خیال په عالم کي د ښکلیو یو ست
هم جام و د جم ، هم د جم سلطنت چی په خوب او خیال کی هما نه راتله

۱۲ - ۲ - ٦۷

---

نقاشه ټول رنګونه ګډ وډ وشيندده ديوال ته
شايد چې څه خو ورته شي زما ليونی خيال ته
ثواب ته به می پريږدي د جنت ټيکه داران
پرې ايښی که يې چيرته يم په عمر کی وبال ته
دسويو زړونو سوې ايره هم آخر وړي باد
په خپل انجام چې پوه يو حه حاجت نه لرو فال ته
د لري افقونو هسکی پينګی را کوه اوس
د حسن تصوره چې ور پورته دی کړم تال ته
د ګوتو زور که نه وي د زړه زور و ته ډال ايښی
رستم په قوي متو ولی سر ټيټوي مړال ته ؟
د لمر په جزيره کی د جلوو غوندی رغښتلی
نه ويره د تيارو وای او نه فکر مه وسال ته
« پسرليه » يا له حسنه مړيدا وای يا له عمره
يا غوټی ور لويدلای د وختونو پر وبال ته

۱۹ - ۲ - ٦٧

---

ورو ورو راشي خيال ته د ناويو په دود ، د افكارو په ځير ، د هنر په قدم
ښيندى نور په ليمو ، تصور روڼوي ، د سپوږمۍ په انداز او د لمر په قدم
څو خوځيږى انسان ډير بدل وي جهان ، هر هر څه وي بل شان ، هم مكين ، هم مكان
چى كاروان د زمان لكه سيل دى روان ، د صر صر په هوا ، د شرر په قدم
راشه زړه كى مى نور او صفا وښينده ، په خاطر مى سرور او خنداوښېنده
د ليمو په تور تم مى رڼا وښهنده چى جړاو لكه لمر كړي ګودر په قدم
مينه ژوند بدلوي ، مينه ژواك بدلوي ، خو اور اور وي كه هر څومره رنګ اړوي
د قلم غوندى عشق كله سر ښكې كوي ، كه فرمان وي درځم به د سر په قدم
چى په لاس او په خوله چنګ ونى ويښوي ، هوش په جام ويدوي ، زړه په مى ويښوي
داانسان دى چى خپل هم پردى ويښوي ، هره لار لري پاى د بشر په قدم

## ٦٧ - میزان

---------

رنگ یې په کتو چې له رخساره ځي
ته وا چې گلونه له بهاره ځي
زړونه چې نازك شي په پلمه درومي
واوری چې اوبه شي له کوهساره ځي
نه وي د نازونو طریقه یوه
ستوري دی هر یو په بله لاره ځي
وچه د غوټی خوله کی موسکا مه شه
کړی د بلبلو له گلزاره ځي
پټ د حسن ځمکه را ته سره کړله
زړهٔ مې شو سوٚکی چې له ناره ځي
راغله د مینا غوندی نشه یی کړو
یوه دا له محفل څخه هوښیاره ځي
شعر می « پسرلیه » که بی لطفه وي
څه ځي وینی زوې له پرهاره ځي

## ۶۷ - قوس

د هیلو په جرس کی هغه شور پاته نه دی
مزل په ختمیدو شو د زړه زور پاته نه دی
د عمر خونده تللي هوسونه خواره شوي
په ذهن د سبا هغه انځورپاته نه دی
د خدای بي وعدي چوي دمغانو سوي زړونه
د مینی په اورتون کی چي بل اور پاته نه دی
ساقي د خم په خولهٔ باندی اوس لویه تیزه کیږده
په لوګه میکده کی چی میخور پاته نه دی
مجنونه د نخچیرو په یارئ کی درته چا وي
د مینی د وفا په غاړه پور پاته نه دی
دیوانو مو په وینو د البرز لمنی سري کړي
سنګاریزي د رستم غوندی کوم سپور پاته نه دی
چی هر نغري ته ګوري وي اور بل ، کټوي باندی
د غم له لاس وهنی خو یو کور پاته نه دی
چی نه وي به پاکانو لګیدلی « پسرلیه »
جهان کی له تورونو داسی تور پاته نه دی

۱۸ - ۲ - ٦۷

----------

ووته له کوره د جلوو بیرغ
ما چی ویل لمر دی د شغلو بیرغ
هسکه غاړه وړي په سهیلیو کی
لکه د ارم د ښاپیرو بیرغ
سوي اسویلی ته می لړ وگوره
دا می دی د زړه د پرهرو بیرغ
پام کوه مغروري چی شهید نه شي
مه می غواړه زړهٔ د فرشتو بیرغ
زه دی یم د مینی د لښکر سرود
تا دی لري حسند آرزو بیرغ
مینه په ټوکرگوره توهین نه کړې
واخله لکه شمه د لمبو بیرغ
ټیټو که یې پرې شوی سر شي مځکی ته
ټیټ به زلمی نه کړی له اوږو بیرغ
څه ټومبې « پسرلیه » د ښایست په کور
زړهٔ یعنی د هیلو د اسرو بیرغ

۲ - ۸ - ٦۷

---------

د غرهٔ د رود غوندی سر شاراو مستانه وای در تلای
دا واړه لار می په خولهٔ مسته ترانه وای در تلای
چی ابدیت دی را بخښلی تقاضو د حسن
له حسرتونو لمن ډکه زمانه وای در تلای
که د آبشار غوندی په سر هم را لویدلی له غرهٔ
خو چی هر گام ته د لغزش یوه بهانه وای در تلای
له ساړه ژونده می زړهٔ سوړ دی لکه سوی پتنگ
په سرو لمبو کی می د هیلو آشیانه وای در تلای
پیام دمینی به څوك دروړي څه به واوري له چا
د خپل جنون یوه مجسمه افسانه وای در تلای
د حسن تږی زړهٔ می غواړی مستی بخښي د عشق !
کور دی بې دره بی دربانه میخانه وای درتلای
په هر محفل کی دی چی حسن تجلا خوروي
مین « پسرلی » دی سینه سوی پروانه وای در تلای

۳ - ۸ - ٦٧

--------

زره غلږی غاړی له اسرو درځم
لکه مست سین په خمیازو درځم
مزل د مینی بې لغزشه نه شي
لکه بیړۍ په ښوئیدو درځم
د عشق پیریانوته غزنی لا څه وي
لکه باد وړی په توپو درځم
نه وي مجنون چی سر او پښې پیژنی
کله په سر، کله په پښو درځم
وطنه بیا دی راته غیږ پرانیزه
چی لکه زاڼی په نغمو درځم
څو به د سترپو اندیښنو په مرسته
زه لکه غل په نیمو شپو درځم
لکه « پسرلی » د اوښکو ژی په غاړه
په ژړیدو په خندیدو درځم

٤ - ٨ - ٦٧

---

په باغ و بڼ کی ټولومه رژیدلې پاڼی
د بې قدرۍ تر پښو دی لاندی نه شي ښکلی پاڼی
زه بلبل نه یم چی لوستی نه شي د حسن کتاب
ګله رندو ته غوړه دا نا لیکلې پاڼی
زړونه دي ، بیل مه شه له حسنه ،تا ته ولی ښکاري
په نری باد باندی له څانګو الوتلې پاڼی
چی د ځوانی په مدرسه کی څومره شوق و ربه
بیا بیا می غواړی زړه چی لوستی می لوستلې پاڼی
بهار ګلونه په ډاګونو باندی وغوړول
د ژوندون مني هم بیځایه وښیندلې پاڼی
خپل معنویت دی چی ښایست ته تقدس ور بخښي
د تمباکو پاڼی به څوک ګڼی سپیځلې پاڼی
د « پسرلی » غوره هدیه ده که یې ومنی حسن
لکه ریدي د زړهٔ به وینو رنګیدلې پاڼی

۸ - ۱۰ - ۱۳۶۷

---

چیری د بلبلو هغه سنکلی فریادونه
او چیری زموږ سویو الیبلی فریادونه
د پټی خولی ژړا خو زموږ هم خونبه وه شمې
د زړهٔ په سر اغزي شي نا وتلی فریادونه
نه زور لرم د تالندی چی هسك په غوږو کوڼ کړم
نه اوري څوك د سویو زړونو غلي فریادونه
که بیا را وریدلو څه طوفان به وي په مځکه ؟
د ورو غوندي له جبره بر ختلی فریادونه
هر څوك چی څه کړي هغه ریبي دغه متل دی
یوه ورځ گوندی چی وریبو کرلی فریادونه
تنور چی څومره سوړ وي هومره غونبه پوری نښلی
په سوی زړه می گرم نه دی چی نښلی فریادونه
نه شمیر شته د غمونو ، نه حساب د الهونو
د ستړي سیڼ په خوله کی چا گنلي فریادونه
ایکاش د زړهٔ تناکو څایولای « پسرلیه »
یاسونو دغه بیرته تمبولی فریادونه

۵ - ۱۲ - ٦۷

پېښور -

چې په وړې خولګۍ يې روح د بهارونو ناځي
زړه مې په خواکې د حسرت په انګارونو ناځي
چې مې په ذهن تصور د خورو زلفو شي خپور
حواس مې درست نغمه نغمه شي په تارونو ناځي
د هسکې ونې تصور دې له پښو مه وولېږه
د ګلو وږم د جنت په منارونو ناځي
د مينې بزم دې سوړ مه شه ، دليدو جوګه وې
ليونۍ څپکې چې د زړه په پرهارونو ناځي
په تخيل مې دې ورېږه تل د حسن جلوې
د مازديګر زري وړانګې په چنارونو ناځي
د مرګ او ژوند پولې چې ګډې نه کړې مينه نه ده
د سر فرازو لوړ سرونه په دارونو ناځي
د هيلو کور کښې « پسرليه » تصور د حسن
بلې لمبې د خس وخار په انبارونو ناځي

۶۷/۱۲/۳

---

چی گل شندي د حسن په پالنگ نوبهار
را واړوی د فکر په سر بنگ نوبهار
زه مست او ليونی شم وهم پل دی په صحرا
تا کښېنوي د زړونو په اورنگ نوبهار
که ستا د حسن رنګ يې په زړه اور نه وی بل کړی
گلونه څه را باسی په هر رنگ نوبهار
چی هر پلو غزېږی بې اختياره لکه سيوری
را ويښ کړه د بنگرو په بوه شرنگ نوبهار
نور هر څه يې پوره خيژی په کانی د ښکلا
په شوخ نظر دی لېز کړه شوخ و شنگ نوبهار
له ډيره طراوته وانبه نه دی بوټېدلی
برسيره کړد مځکی د زړه زنگ نوبهار
له شرمه دی د حسن سره اوړی سور او شين
په گونگو سترگو گوری درته گونگ نوبهار
پخلا دی وه درست عمر له جلال سره جمال
سوما روزی په غيږ کښی د سالنگ نوبهار
د هيلو د سحر خوږه نسيمه څه شوی څه؟!
بی تا کړم تر غوټيو په زړه تنگ نوبهار
ښايست به «پسرليه» پخې مينی ته سر کيږدی
آخر د غره په غيږ کی شی ور ړنگ نوبهار

۱۳۶۸ـ کال

ما چی وی ځوانی می په ستنه را تله
ستا په خورو شوندو چی پلمه راتله
لطف یې د نګاه له سده وړی وم
خنکه به په خوله ورته شکوه را تله
درسته شپه می هیله چورلیده په زړه
خوا ته د سرې شمی پروانه راتله
خومره به ستومانه وې د خیال پری
درسته شپه می سوې زړه ته تله راتله
سیوری یې د زلفو چی پرې ولویدو
اوښکو ډیوې بلی کړی چی شپه راتله
خومره خاطر خوا ه یې ایښود پل په ناز
ما چی ویل سر ته می نشه را تله
خوب می لید « پسرلیه » څی راځی ښکلې
څومره چی کیدای شي ښایسته راتله

۶۸ - ۲ - ۹

——— - پېښور

گلونه چې له شوقه په وربل غوړوي غېږ
زخمونه مې بيواکه يو په بل غوړوي غېږ
منظوره وي د ښکليو ، د مين سيه روزي
د ناز ښکلې ليمې چې په کجل غوړوی غيږ
د وصل تصور چې مې په ذهن شي را خپور
د لمر زري وړانګې وی په کابل غوړوي غيږ
دژوند يو واقعي فلم که ګورې څه چې څو
يو شور دی دمرغانو، په ځنګل غوړوي غيږ
چې څومره وي سرکش حسن هم هومره وي لطيف
موجونه د ساحل په شګو تل غوړوي غيږ
تاويږی را تاويږي ، زغمی سل پريشانۍ
په ښکليو خپلی زلفی هم په چل غوړوي غيږ
چې زړهٔ مې لکه سيوری په سينه ورښويوم
ملکی يې د حسن په درشل غوړوي غيږ
عالم حسن پرست دی د مجنون غم لری څوك ؟
په کومه سپيره دښته به يې پل غوړوي غيږ
قربان له داسی مرګه د شاهانو زندګی
چې حوری د جنت دی په مورچل غوړوي غيږ
اخر به « پسرليه » سره حل شي نازونياز
يقين هم کله کله په اټکل غوړوي غيږ

۱٤ - ۲ - ٦۸

——— - پیښور

په مست نظر کې یې مستي د آبشارونو اوري
ښکلې موسکا کې یې ښکلا د بهارونو اوري
زه دې لا لوګ ګودر کښې لارې د راتلو څارمه
د لمر وروستۍ پلوشې هم تر چنارونو اوري
د لاس او پښو خاونده هڅو ته خنډونه څه وي ؟
چې را ولیدلې سیورې هم تر دیوالونو اوري
په غم مې مه عادت کوه که وارسته مې شو زړه
وزمې یو شان په ګل وبرګ او په خارونو اوري
زلفې یې داسي لبالب دي د ښایست په نغمو
چې بې زخمې یې د نغمو موج له تارونو اوري
ورته یو بل نوم چیرته ګوره په قاموس کې د درد
د زړه آزار مې یاره نور له آزارونو اوري
« پسرلیه »مات دې مه شه مینې کښې د خیال وزرونه
چې د عقاب غوندې آسان تر حصارونو اوري

۱۷ - ۲ - ٦٨

---

چی خوله می په سوال هم په جواب ماته شوه
بې جرمه ملغلره په خپل آب ماته شوه
ما وې چی بیا به نه کوم د حسن بندگی
زر ځلی می توبه په دې ثواب ماته شوه
آرزو می زړهٔ کښی غوټه شوه چی مُسکه دی شوه خوله
نغمه وه د دریا چی په گرداب ماته شوه
که هر څه دی اوبه دي ، په اوبو الوزی خوب
نشه د تخیل می په شراب ماته شوه
په مینه کښی تاوان وي اصلي کته ، سمندر شي
پیاله که په دریا کی د حباب ماته شوه
د مینی پتنگان دی په لمبو مه ویروه
بیړۍ نه ده څپه که په درياب ماته شوه
د ژوند تنده به خضره شي د ژوند په اوبو ماته
که تنده د لار ورکو په سراب ماته شوه
دا سپين ویښته تر سپينو تروو نه وو دومره کم
پیري راغله ، نشه می د شباب ماته شوه
زما سوی خاطر ته چی یې وکتل « پسرلیه »
خوله د خجالت په اوم کباب ماته شوه

۶۸ - ۲ - ۱۷

——— - پیسور

ورك مې د سوی زړه آرام دی ته به کله راځې ؟
خوب مې د سره دوزخ په بام دی ته به کله راځې
نازکو څانګو اړولی تر دیوال سرونه
د ونو ، بوټو درپسې پام دی ته به کله راځې ؟
راځه تیریږي د بهار مستی بخښونکې ورځی
د هر ریدی په لاس کی جام دی ته به کله راځې ؟
د مازدیگر د زیړي لمر پلوشې وژغوه
د هر ضمیر دغه پیغام دی ته به کله راځې ؟
غوټیو پریښوده موسکا ، بڼ دی وحشي غوندی شو
هیر دي له زرکو نه خرام دی ته به کله راځې ؟
پلوشو ونغښتلې پیڅی ، نظر لار ورکوی
په لوګ ګودر تیاره ماښام دی ته به کله راځې ؟
د « پسرلي » روح روانه ، پسرلی وګوره
د پسرلی هم آن تمام دی ته به کله راځې ؟

۶۸ - ۲ - ۱۸

---

دا دوه عالمه کار او مختصره زندگی
خو حیف چی بیا هم تیره شي هدره زندگی
که سل پیړۍ هم وی چی نه دی کور وی نه دی اور
د لمر غوندی به څه کړم در په دره زندگی ؟
بس یو قدم کافي دی چی یې واخلې مردانه
چی زده کړی څوك په عشق کی له شرره زندگی
اوبه د ژوندون نه غواړی د مینی شهیدان
را اوری یې د گور له بام ودره زندگی
په درست عمر یې نه کړمه چی یوه لمحه خوشحال
پروا می څه که لاړه مروره زندگی
په خپلو اوښکو وینو چی محفل ته بخښنو نور
د شمی غوندی راکړه ربه غوره زندگی
« پسرلیه » راته ښکاري د وفا په افسانو کی
د هر چا له ژوندون څخه بهتره زندگی

۶۸ - ۲ - ۱۹

——— - پیسور

زړه چې له ښکلیو مهرو مینه غواړي
د سپین مر مر له رګه وینه غواړي
فرهاد هم غواړي له عالمه هغه
څه چې په غرونو کې شیرینه غواړي
چې د لیلا کیسه زړه شوه راځه
جنون اوس تانده نازنینه غواړي
محفل مو نغښتې په تیارو کښې حجاب
د سپینې شمې خبر سپینه غواړي
که لذت نه مومي له غمه خلك
د نې نوا ولې حزینه غواړي ؟
چې تر لیمو یې وي په شونډو مین
د میو کیف له انګبینه غواړي
ښکلي هم وي ښایي د حسن تږي
چې مې آرزو د زړهٔ حسینه غواړي
را ته ناصح بیځایه خولهٔ وچه کړه
ساده آرام د غره له سینه غواړي
په بتخانو کښې د خیالونو «پسرلی »
د رږه ټوټه د زړه له پرینه غواړي

۶۸ - ۳ - ۲۸

——— - پیښور

له زړه نه چې زخمونه پیښی نه شي ټولولای
له زخمه هم دردونه پیښی نه شي ټولولای
د مینې له مستانو څه ادب غواړئ ، څه فکر؟
نیزونه دي ، نیزونه پیښی نه شي ټولولای
نسیم مګر دتا د راتلو زیری باندې وکړ
په څانګو کې ګلونه پیښی نه شي ټولولای
د مینې وفادار خو څه مختوري سیوري نه دي
له دره دې سرونه پیښی نه شي ټولولای
حواس مې خوروي درته کمال د نازکۍ
نګهت شي ، نګهتونه پیښی نه شي ټولولای
له تاره لټیدلې نغمې نه کښېني پو تار
بیځایه چې شي زړونه پیښی نه شي ټولولای
ایرې به مې هم وويني چې ځي به هرې خواته
په مړینه هم اوروونه پیښی نه شي ټولولای
که هر څو « پسرلیه » ورته زړه را ټولومه
په خوله کښې مې عرضونه پیښی نه شي ټولولای

۶۸-٤-۲

---

راځه د حسن تقاضا هیره کړه
ښکلي سپیڅلي استغنا هیره کړه
یو ځو لمحي په جنون بخشی نګاه
له مخمور انو نه صهبا هیره کړه
بیا را ته ووایه د مینی سبق
چی د ژوند توریو می معنی هیره کړه
د شني لمنی د شنه زړهٔ په خاطر
له مستو زرکونه خندا هیره کړه
لیلی صحرا ته ویوست خپل لیونی
تا له هوسیو هم صحرا هیره کړه
ستوری سپوزمی په نګاه وتخنوه
له توری شپی مو غزیدا هیره کړه
سحر وجادو و که ښایست د نظر
زما له زړهٔ یي تمناهیره کړه
چی راځی ناز ته دی هم مه وایه څه
عشوي دی پریږده او ادا هیره کړه

واوښتې با خاوری د « مجنون » په مخ
نه ښکاري څه دوړي د هامون په مخ
واړه ژوند چی مست یم د « شیرین » په خیال
بخت می را وینښ شوی د « گلگون » په مخ
لمر ته لږ پلو له مخه واړوه
ویې وله وړانگی د گردون په مخ
شرم یې د آرزو په اور اوبه شندي
ناز یې تودوي ورته اورتون په مخ
نورو پسې تگ سړی خړ مخی کړي
گرد د لاری وگوره د شپون په مخ
ښکلې په موسکا څه تولوې زړونه ؟
څوك به درته نه بخښی خپل خون په مخ
خپل تیري « پسرلیه » د سیلونویې
خـاوري اړولې د جیحـون پـه مخ

۲۰ - ٤ - ۱۳٦۸

---

اوښکو ، ښېښې درنیسئ وخت د غم نه دی
عید یې د دیدن دی محرم نه دی
شمې ، که سیالي د سوځیدلو وي
دا لیونی زړهٔ هم تر چا کم نه دی
هر بوالهوس مه گڼه محرم د ناز
هر په زغرو پټ گوره رستم نه دی
هر زړهٔ ته الهام د مینی نه ورځي
هر سړی چې جام ولری جم نه دی
دلته چې نه پور شته ، نه دیت ، نه تور
چا ویل د مینی بل عالم نه دی ؟
اوښکو ته می مه گوره په سپك نظر
شمه ویلی شوې ده شبنم نه دی
پریږده د « پسرلي » زړه درته وچوي
مه کوه ترې سترگه گوره بم نه دی

۲۱ - ٤ - ۱۳٦۸

---

درده ، په خوله باندی می کیږده یوه نوې دوعا
چی نیمه خوا راته ښکارېږی وزر سوې دوعا
د استغنا په لوړ درشل به یی اوس څوك ومنی ؟
د حسرت کور ته په ټیټ سر را ستنه شوې دوعا
تشی خبری به د خوږین زړه ترجمانی شی څه
مگر له ځانه سره واخلی وینی زوې دوعا
کمکۍ ملکی دی له خوبه باندی وایستلې
تر عرش می کرځی هره شپه لکه بزوې* دوعا
د زړه د پرین آستر یې بویه که هرڅو ښکلی وی
« پسرلیه » ډیره لږ قبلیږی یوه ستوې دوعا

---------

* بزوې یو ډول گیډۍ ته وایی .

۲۲ - ٤ - ٦٨

---

دا ذهن او زړه، ته ګلفروشه راځي
چې د ګل بوی مې له آغوشه راځي
له ما یې څه پوښتې انداز د خرام
دوه غرونه ها پلو له هوشه راځي
څه به مې وګوری قطرې د اوښکو
چې لکه بحر دریانوشه راځي
چې راځي مځکه آسمان ولړزوي
د ژوند نغمه کله خاموشه راځي
« پسرلیه » کسي سپیلني کړه ورته
چې لکه شمه شعله پوشه راځي

۶۸ - ٤ - ۲۲

---

بیګاه یې بیا د نازله اوجه کتل ما ته حسن
تلپاته مینه جاریدله تر تلپاته حسن
لیلی د زړه پردو کښې ونغاړي د مینې پیرزو
مجنون لوڅ سر لوڅې پښې وياسی صحرا ته حسن
چې هره خوا ځی ورپسې وي یو عالم د زړونو
له لورینی اول مخ واړوی چا ته حسن ؟
لکه سپوږمۍ ته چې ښکاره شي د بهار ګلونه
د حسن خیاله را ښکاره کړه هرې خواته حسن
شوخی د ناز یې د ښایست تر پولی هم اړوي
زلفی یې شا ته واړولی ، پریږدی شا ته حسن
زاهده ډیره بې پاسی ده که یې نه ونمانځی
چا چې له ځان سره راوړی وی دنیا ته حسن
یو عمر فکر او فرصت بویه چه یوه غوره کړم
که می زړه پریږدی یوې سپیڅلې تمنا ته حسن
پوخ تخیل هم عشق ته ورو ورو بې نیازي وربخښي
که بال و پر شي ورکولای استغنا ته حسن

۲۷ - ٤ - ٦۷

---

بیا به را رونه کړی دنیا بل سحر
زدي آخر د شپې په غولي پل سحر
ربه د برېښنا په څل خو پرېوتو
غوارو لکه ستوري درنه خپل سحر
شپې هم کله کله وی تر ورځو بنې
را دی شه ، (خو ژر نه ) په وربل سحر
وګورئ د لمر د مینې تندی ته
خوله یی زدی د حسن په درشل سحر
حسنه تصور دی جنتی کړمه
شپه یې د پغمان وي د کابل سحر
څوك به له دې هسکه د بنو تمه کړي ؟
اړوي په تور او په سپین تل سحر
پست چی وی ذهنونه رونیدای نه شي
څه به کړی « پسرلیه » د سین تل سحر

٦٨ - ٥ - ٥

---

له غمه به هغه دم څه آرام پاته یم
چی خوا کښی د ډك خم لکه تش جام پاته یم
درست عمر می غم نه دی سپیدو ته زړه ورکړی
بیا هم لکه دیوال د بټی خام پاته یم
د لوگ گودر په غاړه لکه مات گړی د چتو
بی وسه تاریکۍ ته د ماښام پاته یم
نظر چی کړم په ځان ، هم په زمان او په مکان
دهیلو یو بیځایه ایښی دام پاته یم
یو ځلی خو له ما وکړه اوله بسم الله
له ویشه دی ساقي گوره مدام پاته یم
د ناز نازکی نشته چه په پاڼو کښی د گل
په خیل د بلبلانو کی گمنام پاته یم
« پسرلیه » د ویشتلي صحرایی مرغه په څیر
یواځی د یو ورك ستوري په بام پاته یم

سنبله - ۱۳٦۸

---

دا چې د محفل په تنکو زړونو نظر وټومبی
شمه ورته سوی زړه ناچاره په سر وټومبی
خدایزده چې را پورته کړی بیا سر په اتلانو کی
دا د ښکلا شل که د رستم په ځګر وټومبي
بیا که سحر خیزه ، ګریوه چاکه را ښکاره شوله
ګل د پلوشو به په ګریوان د سحر وټومبی
لاس که د سحر نسیم ته ورکړي بوی د زلفو یې
هر د زړه ازغی به می په سانګه ثمر وټومبی
ستا د التفات یو تصور به باندی ورنه کړم
هسك که می نشان د لمر په سوی تتر وټومبی
هر ځل چې یې شوخ لیمه لوبیږي له بڼو سره
یوه کوته ازغي می د آرزوپه پرهر وټومبي

۱۳٦۸/ میزان - پېښور

---

د وصل تخیل چی می په سر کی نڅېدو
توفان د پلوشو په سوی لمر کی نڅېدو
جذبه یې د ښایست وه که یې شور د محبت
چی زړه می اباسین شو په سفر کی نڅېدو
په ږغ یې د راتللو چی می خپل زړه ته کتل
سپند د نظر ماتې په مجمر کی نڅېدو
د ناز له نازکیو به می زړه ته څه سپارل ؟
د مست طاوس په شان می په نظر کی نڅېدو
بیګاه چی می نګاه په زخمی زړه وهلې ګوتی
یو خوږ خوندور درد به یې پرهرکی نڅېدو
خیال می څپ څپاند شو په نری‌موسکا له لری
توفان په بیکرانه سمندر کی نڅېدو
شاکي نه و، هوس د بیاوړلو و راوستی
« پسرلی » چی کفن څیری په محشر کی نڅېدو

عقرب / ۱۳۶۸- پیسور

---

تر خوا پوری يې ځومره په هوس ځم او راځم
روان یم شپه او ورځ لکه نفس ځم او راځم *
حاصل به مې نور څه وي د ژوندون که خوله کړم پته
د بل په اراده لکه جرس ځم او راځم
په هیڅ نظر هم کله راته ونه کتل شنکلیو
دباد په نیلی سپور چی لکه خس ځم او راځم
د مینی لیونی یم را نه څه غواړئ کرار
کری شپه دی تر کوراوکلي بس ځم اوراځم
دا تش کوګل ولاړیم چی په لاره کښني د شنکلیو
په ورك زړه پسی ګرځوم قفس ځم او راځم
د مینی اندیښنو ځومره تنها کړم « پسرلیه »
خپل کورته هم مدام لکه بیکس ځم او راځم

---

* ـ دا مطلع د پارسي شاعر « كامي سبزواري » له دي مطلع څخه ژباړل شوی :

« بسکه سویش بهوس می روم و می ایم
روز و شب همچو نفس می روم و می ایم »

۶۸ -۹ - ۵ - پيښور

---

چی زه اوته وو، دسین غاړه وه ، اوښکلی بهار
تل می تر سترګو سترګو کیږي ، هغه تللی بهار
چیری ته ، چیری د ګلونو مصنوعی ښونه
هره جلوه دی ده یو ځانته غوړیدلی بهار
مه راته غواړه همه عمر دلسردی د خزان
راوله ، راوله نن بیا تر لاس نیولی بهار
ښایی بهار دی هم لیواله وي شپني پښتني!
په غزونو ، غزونو چی راغلی بهار
د حسن لمره پلوشې دی باندی وغوړوه
ما درسته شپه درته په اوښکو لمبولی بهار
ته به د نورو نیازمندو خوا ته څه وګورې
چی هر پلو وی درته ګل په ګل غوټومبلی بهار
د « پسرلی » روح روانه بن ته روح وبخښه
بې له تا څه کړم لکه خپل زړه الیبلی بهار

۶۸-۹- ۳۰

——— - پیښور

توبه مې چې مستي کښې د شباب ماته شوه

مینا د نور په ترخ کښې د مهتاب ماته شوه

په کومې میکدې کښې به د غم ورځې تېکم

نشه مې چې د خپل زړهٔ په خوناب ماته شوه

ورباسي به یې چیرته له عدمه پرته څوك ؟

بېړۍ مو چې په غېزکښې د گرداب ماته شوه

سرکش فلك به هم شي پشیمان له خپلو کړو

خوله د خجالت که په سیلاب ماته شوه

قسمت که غلیم نه وي د سپېڅلو زړونو ولې

سپېڅلې ملغلره په خپل اب ماته شوه

رك رك مې نغمه خیز وو خوږنونه یې لوگی

تنکۍ نغمه له لاسه د مضراب ماته شوه

سیاست دی چې رستم هم کړي مغلوب د واهي کین

د چا د شنه په زړهٔ کښې د سهراب ماته شوه

زموږ په وچو شونډو گوندی شیخه شي خبر

مینا که دی په پښو کی د محراب ماته شوه

چې لارو « پسرلی » هم نه څه مات شو نه څه توی

بس یوه سترې ځپه وه په درياب ماته شوه

قوس ـ ۱۳٦۸

ـــــــــ ـ پيښور

زما به هم پرهر په پرهر پيټی شي
سيوری که د سيوري په سر پيټی شي
مينه به يې زه هم په سر بوج ګنم
چيرته په صدف که کوهر پيټی شي
غرونه د غم ګوره د مين په زړه
حسنه چی په تا يو نظر پيټی شي
اوښکو می تالا کړې د ديدن خوښئ
ستوری د ماښام په ګودر پيټی شي
اوړي هوښيارانو ته تل خپل خلك
پوخ چی شي په ځانګه ثمر پيټی شي
داغ چی يې د مينی قبول کړی وي
سور مدال په هغه ټټر پيټی شي
پورته ځي « پسرليه »چی بې آبه وي
نم هم د پوټي په وزر پيټی شي

حوت ـ ۱۳٦۸

ـــــــ - پیښور

زړهٔ له امیدونو لکه ډکه پیمانه غواړم
سترګی حسن بینی او دمینی خزانه غواړم
شور لکه د غرونو د سین بویه نه مستي دمی
ټول عمر په خولهٔ باندی یوه مسته ترانه غواړم
خوب وخیال شي ژوند چی حقیقت نه وینئ نه اوري
خوب چی رانه واخلي یوه داسی افسانه غواړم
سر چی یې له جامه را اوچت کړی د سوما بوټی
بیا د هندوکش په خوا کی هغه میخانه غواړم
بل زړهٔ می له شمو رڼا نه غواړی په شپه کی هم
خواته د مهرو شمی وزر سوي پروانه غواړم
وامی خیستل ایښی خلي بیرته چنارونو نه
څم لکه پتنګ په سرولمبو کی اشیانه غواړم
پل د ورك مجنون وهم «پسرلیه» په پرته صحرا
چا چی پیژندلی وځان ، هغه فرزانه غوارم

۶۹ - ۱ - ۱

راځي چمن ته د ښايست د کاله غړی بهار
راځه راځه چې بې له تا ښکاری نيمګړی بهار
زموږ ارمانونه به هم ګوری څه ګل راوړي که نه
زرغونوی چې هر بيحسه ويده زړی بهار
ګمان مې نه شي چې لمن به راوړی سره ګلونه
ګلونه نه دی په تبې اچوی غړی بهار
د ګران وطن لاری وختونو کړی اغزنی همه
کوم يو اغزی به له پښو کاږی په زړهٔ ستړی بهار
موج د ګلونو ته په تمه وو« پسرليه » خو حيف
د زړهٔ نيمښوره تسل هم را څخه وړی بهار

۱۳۶۹ / جوزا

ـــــــــ - پیښور

توری توري وریځی چی اوري د ګلشن په لور
ستنې می د صبر کړي رنګی د وطن په لور
سیوری یې د وره ښه یم ما ته د تلو مه وایاست
مست یې د کا کل د بوی نه ځی د ختن په لور
دام و دانه څه حاجت ، ور د قفس پرانیزه
خپله خود آزاره زړه درومي د دښمن په لور
ژوند د ژوندو جرم دی چا له خاورو پاڅول ؟
مړي په اوږو اخلو وړو یې د مدفن په لور
دی چی را ته وکتل بیا په نا اشنا نظر
ما چی وې را کښېوتې زرکی د لمن په لور
موږ د زړه له غوښونه جوړه کړه پری د ناز
دریغه چی شیرینه اوس نه ځي د کوهکن په لور
خیر که منیژه نه شوې نه ژاړي بندي « پسرلی »
تشه تسلي خو وړه کله د بیژن په لور

## ٦٩ - جوزا

ستا نه به لطف نظر نه غواړي څوك
مستی کوکچۍ نه به زر نه غواړي څوك
په زړه می ناسته ده قاصد څه پوښتم
په کور کی ورکه بهر نه غواړي څوك
ړوند یا ویده که رڼا نه شي لیدای
نور له ملا نه سحر نه غواړي څوك
آه و فریاد بدوي رنګ د مینی
له شمی دود او شرر نه غواړي څوك
له هر چا مه غواړه وفا د مینی
په هر تالاب کی ګوهر نه غواړي څوك
زاړه پسولونه دی کړه ناز نه لوګی
جنګ ته اوس توره سپر نه غواړي څوك
تخت طاوس هم پردی کیږي اخر
ولی به زړونو ته ورنه غواړي څوك
« پسرلیه » څه تخنوې طبعه په زور
له وچو څانګو ثمر نه غواړي څوك

۶۹ - ۵ - ٤

پیښور - ______

بیگاه چی زړه گمراه کړم د رهبر کره می شپه وه
چی شپو پیغی تري نغښتي د سحر کره می شپه وه
ساقي وم خوشی کړ ی د شفق په جزیرو کی
د هوش له ښاره لری ، د ساغر کره می شپه وه
توفان وو د سازونو ، د شعرونو د رنگونو
نگاه چی لیونی کړم د هنرکره می شپه وه
خیال یي کړولم لکه کب د سین په غاړه
چی لری له دلبره د دلبر کره می شپه وه
د زلفو تصور یي چی زما په ذهن خپور وو
په مشکو کی ویده وم ، د عنبر کره می شپه وه
چی شوق یي د سپین مخ په څپلو اوښکو پریمنځلم
له پرخو سره لاړم او د لمر کره می شپه وه
جنون له شوراو شره د سیپی زړه کی کړم غلی
رون ځاځکی وم د مینی د گوهر کره می شپه وه
کری شپه د فکرونو توفانونو زنگولم
یواځی پاته قو وم سمندر کره می شپه وه
« پسرلیه » له فراقه به یي نور څه درته وایم
له ځړیکو سره مل وم ، د پر هر کره می شپه وه

٦۹ - ٥ - ٤

پیښور

قدم چی چیرته اخلمْ پل په پل دی یادوم
د سیَن غوندی غنگی‌ږهم او تل دی یادوم
گلشن کښنی که هم کرځمه مقصد می ته یې ، ته یې
بورا دی کړمه مینی گل په گل دی یادوم
بیگا می لید د مینی د وفا اجر په خوب
په خُلد کي یم د حورو او درشل دی یادوم
پیوند دی لکه میخ چی په ښتك وهلی کیږي
هر ځل تر پخوا تینګ شي چی هر ځل دی یادوم
تر اور به سوځونکی لوگی نه وي چا لیدلی
په زړه می سور اور بل شي چی اوربل دی یادوم
وطنه یادوم دی په هر نوم په هر عنوان
فرخار دی یادوم او که کابل دی یادوم
په ذهن کی می یو بهار ریدي شي گریوه چاك
شهیده چی په وینو سور مورچل دی یادوم
د مخ تر ښکلا ډیر کم نه دی حسن د هنر
« پسرلیه » لیونیه په غزل دی یادوم

۶۹ - ۵ - ۷

پیښور - ———

بیگا یو سپیلنی وم په مجمر باندی می شپه وه
له زړه سره مشغول وم ، په اخگر باندی می شپه وه
یا دغه بدی ورځی ، یا هغه د خم په غاړه
ساقي چی میلمه پال وو، په ساغر باندی می شپه وه
د تا په تصور کی می چی سر په زنگون کینبود
سپین باز وم د پامیر او په سپین غر باندی می شپه وه
له لطفه د خیالونو ویلیدم او څڅیدم
شبنم وم د گلونو په بستر باندی می شپه وه
ته تللي وې خو یاد دی په ما ستوري ورول
د تا نقش قدم وم په گودر باندی می شپه وه
قربان دی شم له لطفه د خیال چی لکه کسی
د تورو شپو په زړه کی په سحر باندی می شپه وه
د شعر تخیل په پردیسۍ کی جنتي کړم
د تاندو اداگانو په کشور باندی می شپه وه
بر وختم « پسرلیه » چی د خیال په وزرونو
له ستورو سره رغښتم په ناور باندی می شپه وه

میزان ـ ۱۳٦۹

پیښور

ستا نګاه هم په محفل کی دومره نه کړم ورتم لاړم
لکه پت ته چی روس شا کړه ، لکه جنګ ته رستم لاړم
ته د ناز په چراشپو کی ، زه د هوش له کلي پلی
چی ته لاړی نازنیني ژا ته ګوره زه هم لاړم
ستا د وصل له درشل نه د خیال په لمسونه
لکه لاړ چی شي له زړهٔ نه په کوم سبه زیري غم ، لاړم
انتظار له حده تیر شو ، ډیر دی کښیناستم په لارکی
ورو ، ورو مل شوم د بادونو لکه نقش قدم لاړم
آواره او سرګردان کړم بوړ بوکیږغوندی وختونو
د دردونو بیرغ راغلم ، د آهونو علم لاړم
ژوند می څه و« پسرلیه » بس یو تریخ شان تبسم وم
د هستیږپه شونډو خپور شوم ، د مستیږپه کرم لاړم

میزان / ۱۳٦۹

——— - پیښور

چې پستې شونډې یې د نرمې موسکا ناز اخلي
د بوسې تنده د مین د ژړا ناز اخلي
ناویسا زړه مې واړه عمر لکه بله شمه
په تیاره ژوند کې بس د خپلې رڼا ناز اخلي
سوی نظر به یې په سرو اننګو ځنګه شي تم
چې یې خپل رنګ هم د معصومې حیا ناز اخلي
تورو لیمو ته که یې سوی زړه رانجه هم کړمه
له نازه رنګه به لا ځنګه دچا ناز اخلي
چې په پلمه ځي تنها کیږي مروره نه وي
پته ، هنداره کې د خپلې ښکلا ناز اخلي
ښایست یوه روح ګڼې مین لکه د شاتو مچۍ
په بڼ د حسن کې د هر ګل جلا ناز اخلي
په مستو سترګو کې یې شور وي د غوښتو « پسرلیه »
غمزه غمزه ګوري ، ادا د ادا ناز اخلي

۲۲ - ۹ - ٦۹

پېښور

د مینی هغه لار ده چې همه باندی ښویېږي
د یخ د مخ خوله هم په غرمه باندی ښویېږي
ما څه ګرموې شیخه ، دریابونو ته نظر کړه
چې زړونه یې پاسته وي په پلمه باندی ښویېږي
د سویو زړونو اوښکې په انګې د استغنا کې
قطرې شي د باران چې په خیمه باندی ښویېږي
د پرخو څاڅکی کسه ، د ګلونو بوی ته ګوره
لغزش ته چې پیدا وي په ورمه باندی ښویېږي
که غرونه هم شي زړونه ورته نه شي ټینګیدلای
نګاه چې یې له حسنه په سرمه باندی ښویېږي
رګونو کې مې مه غواړه سرې وینی چې تا ګورم
نغمې دې له تارونو په زخمه باندی ښویېږي
« پسرلیه » د الفاظو قوت څه غواړې له مانه
غزلی مې له ضعفه په خامه باندی ښویېږي

۲٦ - ۹ - ٦۹

———— - پيښور

دا كه ته نه يې زما سر او تال ته ځوك راځي

چې پينګې وركړي د فكرونو تال ته ځوك راځي

په نيمو شپوكې چې عالم وي په تيارو كې نغښتى

دا پښه نيولى زما ستړي خيال ته ځوك راځي

تا په بادو كې د نشو د لذت روح پوكلى

د حسن زور دى په لوى زړه وبال ته ځوك راځي

كه د ژوندون ښايسته هيلو ته سيمرغ نه وايې

د غرهٔ په خوړو كې پرېښايښي زال ته ځوك راځي

د جنت بڼ به سور دوزخ شي كه ستا حسن نه وي

كه د سپه مخ له مخه نه وي خال ته ځوك راځي *

آرام لوټي رانه « پسرليه » تصور د حسن

په نيمو شپوكې د شپنو خوال ته ځوك راځي

---

* — خوشحال بابا وايي :

« كومه مينه چې په خال په زخه كيږي

كه يې ګورې د سپه مخ له مخه كيږي »

٦٩ - ٩ - ٢٩

---

مى مګر غمونه زموږ پاك په غاړه واړوي
سيل شي يو جهان خلي خاشاك په غاړه واړوي
مست زړهٔ مې خيال د ښو پورته کړله خاورو نه
لکه چې چيله مست شوى تاك په غاړه واړوي
ناز ليونى کړى هيڅوك هم په کاڼو نه ولي
لمر که خپل کميس تر لمن چاك په غاړه واړوي
ښايى چې د حسن په بساط کې يې نور څه نه وي
ګل ولې څادر هسې نمناك په غاړه واړوي
پل در اخله زړهٔ ، په مخ کې شپى د هوسايى لرو
ستړى قافلې چې د مغاك په غاړه واړوي
دار دى د مسيح ، وړل يې په خپلو اوږو زړهٔ غواړي
عشق نه دى پتلون چې يې بيباك په غاړه واړوي
جار دى شي «پسرليه» د چکلې تر ډمې زر څلي
څوك چې په تاودهٔ بازار کې واك په غاړه واړوي

۱-۱۰-۱۱۳٦۹

---

چې رویایي ښکلا مې یو موتی په غرو کې لیده
د زړهٔ آرزو مې د ارم په ښا پیروکې لیده

د تصور پرده وختونو بده ونغښتله
د جنتونو سر قلمي مې په درو کې لیده

د خپل اختیار هره لمحه مې وه ترې ډېره مسته
کومه مستي چې مې په ټول د میخورو کې لیده

نه د توفان ځپو کې شته ، نه د سیلۍ په زړه کې
هغه جذبه چې مې په پلیو ، په سپرو کې لیده

هیلو را پاځئ مازدیګر چې مې خیبر ته کتل
خیالي ډولۍ مې د شفق په جزیرو کې لیده

درځئ چې را یې وړو تر څو به په تیارو کې پټ یو
د ژوند ډیوه مې په متروکو هدیرو کې لیده

د چنار رغوي ورته وچ شول خو وږمې د سحر
د بڼ ښکلا بس د غوټیو په څېرو کې لیده

چې هندوکش ته خاوند هر بې لاری شوي راووست
د همت برخه یې د غرونو په زمرو کې لیده

« پسرلیه » څه وشو بیګا چې مې خپل زړهٔ ته کتل
ناویسا هیله مې سر تیټې په اسرو کې لیده

٦٩ - ١٠ - ٢

---

ای ، ای د ژوند نشې له ښکلی تاکه مه راځه
یا مسته کړه دنیا ، یا خو بیباکه مه راځه
له لاسه که تقوا د پتنګ نه لاهو کوې
راځه ، خو لکه شمه عرقناکه مه راځه
وحشي غرځنۍ رنه یې ولی شاوخواته ګورې
د ناز د سبا ستوری یې شکاکه مه راځه
سرونه د ښایست د اداګانو سپیلني کړه
دا چا درته ویلی چی ټولواکه مه راځه
ملا په تور د مینی له اسلامه وایستمه
زما لیونی زړه اوس له ویساکه مه راځه
د صبر سینه مه څیره د ګل غوندی په ما
محفل ته د رندانو ګریوه چاکه مه راځه
که نه غواری « پسرلي څخه سجدې د بندګی
راځه ، دومره می پورته له ادراکه مه راځه

۲ - ۱۰ - ٦۹

---

شپه ووته گرده ، ولی نه راغله ؟
نه راغله بیدرده ولی نه راغله ؟
ته ورپسی ووځه که یواځې وه
گوره آه سرده ، ولی نه را غله ؟
تل به می ولاړه وه د زړهٔ په بام
نن هغه شبگرده ولی نه راغله ؟
ما وې په ریښتیا به سره وگورو
خیال ته شوم رنګ زرده ولی نه راغلهٔ ؟
چاړ د رڼو ستوریو سر وهلی دی
نه راغله ، نامرده ولی نه راغله ؟
هیلو ورته لاری پوتی کړې وې
تښتی به له گرده ولی نه راغله ؟
څه پوزه یې جوړه کړو درواغو ته؟
ها په حسن فرده ولی نه راغله
نیاز به هم لري « پسرلیه » حق په ناز
وایم چی په زغرده ولی نه راغله ؟

٦/۱۰/٦۹ - پيښور

---

نګاه مې څه دربولي مسکينه ليونۍ شوه
توفان کښې د ګلونو ګلچينه ليونۍ شوه
انجام به دزړه څه وي ، د دوو ليونو سر دي
څه حسن ليونی و ، څه مينه ليونۍ شوه
که خپل زړه مې ورپرېږدي ايښي به ماتومه
له چارو د هندارو خودبينه ليونۍ شوه
زرين پلاز ته درومې د مينې تخت نشينه
فرهاده ليونی شه ، شيرينه ليونۍ شوه
محفل به دي د حسن روڼ ساتي لکه شمه
د زړونو د رګونو که وينه ليونۍ شوه
دتيزو له رګونو چې غواړې توده وينه
تيشه دې بت تراشه له دينه ليونۍ شوه
نغمه مې « پسرليه » له سُر اوتاله وځي
له زوره د غمونو غمګينه ليونۍ شوه

٦۹ - ۱۱ - ٤

---

هغه دی یاد شی ، چی ژوندی دی و احساس د مینی
وو لاس ترغاړه پاس د حسن او پاس د مینی
دواړو په مینه د ویالو نریٔ غنګیٔ اوریده
د چنار پاڼو په وزمو تیراوهٔ لاس دمینی
په هر نظر به دی پر مخ شرم خولهٔ ماته کړه
خدایزده جوهریه وود حسن ، که الماس د مینی
ما درته ډیری سنکلي هیلی د زړه ووژلي
چی جنایت ته هڅوي خلك وسواس د مینی
په زلزلو ، په توفانونو نړیدلای نه شي
چی د یاری بنسټ وي ایښی په اساس د مینی
د منارونو ارتفاع له پراته سیوری پوښته
د حسن حد مګر معلوم شي په مقیاس د مینی
په لیونیٔ مینه کی امن د سر نه غواړي څوك
چی تر سیلاب هم وی سر کښ « پسرلیه » آس د مینی

٦٩ - ١١ - ٤

---

کوچیږ هیلی می زړهٔ ته را ستنې شوې ځه چی ځو
لمنی د گلونو کوربنې شو ې ځه چی ځو
آرام می له ویشتلی زړکی واخیستله کړه
چی څړیکی د زحمونو میلمنې شوې ځه چی ځو
د حسن مستې پاڅه او په زړهٔ می کیږده لاس
لیمې چی دی له خوبه را درنې شوې ځه چی ځو
په لاره کی بی گوندی د خاپونو غوندی پریږدو
را ویښی می بې لاری اندیښنې شوې ځه چی ځو
د میو د حلقو غوندی خوری وزمې د باغ
خیالونو ته زرینی ځولنې شوې ځه چی ځو
په شنه لمن کی خوند کوی ټوپونه د وختونو
چی هیلی د « پسرلی » د شپو شپنې شوی ځه چی ځو

۶۹ - ۱۱ - ۵

---

بلبله ، که محروم یې د ګلشن له منظرو نه
تر ما ښه یې ، ناله خو دی وتی شي له پنجرو نه
تر تا در رسیدلی تخیل چی را ستنیږي
هغه باد وی چی راشي له سمسورو سر درو نه
زما حواس دی مینی خورول په تا وطنه
ماښام چی ځولولې لمر زری زلفی له ورو نه
د وصل آرزوګانی په درشل د استغنا کی
وریځی شي تکری خوری له دنګو دنګو غرو نه
برف کوچ وویل تیزو ته که پښې خلاصول غواړئ
په سر را لویدل زده کړئ له سر شارو شرشرو نه
د زړه وینی به ځنګه سپموم له مستو سترګو
ساقي نه دی چی وسپموي جام له میخورو نه
« پسرلیه »خپل قلم او خپله طبعه ننګوم
را پاته دی بس دغه دوه له پلیو له سپرو نه

۶۹ - ۱۱ - ۶

سر چی په حلقو کی د دارونو ږدي
څاله د جنت په منارونو ږدي
راغی تصور د موسکو شونډو یې
داغ می د زړګی په پرهارونو ږدي
وایه د زلفو لیونی زړهٔ ته
سر څه په سروېږد د آبشارونوږدي
مه ګوره عشاقو ته په ټیټ نظر
څالی د تهمت په چنارونو ږدي
ناز یی ولی ستوري تلولي نه کړي
پل چی یې منت په بهارونو ږدي
پرخه پاك ضمیر کړي میلمنه د لمر
سیوری سر په پښو د دیوالونو ږدي
څه وایم ، څه ، له بینیازی‌د حسن
لطف یې چی بنیاد دآزارونو ږدی
ناڅي می «پسرلیه»په نازك شعر
مستی نغمې پلونه په تارونو ږدي

٦٩ - ١١ - ٦

---

څو به دنیا د آب وگل ښکلوي
آخر به ستړي ساه منزل ښکلوي
د امن غاړه که سپیڅلې نه وي
مستی څپې ولی ساحل ښکلوي
کمال د حسن دا دلبر سترگه کړه
څومره نیازمنه شوه سایل ښکلوي
مگر ژوندی‌شوې خاوری شوې هیلی
پوټی د لارو یې محمل ښکلوي
په خونریزی کی تر چړو نه دی کم
څوك چی لاسونه د قاتل ښکلوي
د برهمن په زړه تیاره کړه مذهب
چی حق ته شا کړي او باطل ښکلوي
هغه چی وړي «پسرلیه» خولې ته غوټه
زما د زړه غوندی مشکل ښکلوي

۶۹ - ۱۱ - ۶

---

بیا می د لویو لارو لویی قافلې یادی شوې
زړهٔ می جرس شو، د خیال می مرحلې یادی شوې
د چا د زلفو په حلقوکی می نظر وو نښتی
را ته د ګران وطن د غرونو سلسلې یادی شوې
سحر می ولیدل د لمر د پلوشو تارونه
راته د عشق هغه نازکی مسُلې یادی شوې
چی د غروب نشتر دورو رګونه وپڅیل
په شنو درو کی می د سرو وینو ولې یادی شوې
چی په آرام بحر کی بیا د څپو شور ولګید
په غلغله کی می چوپ شوی غلغلې یادی شوې
د اباسین امواج چی یوړ بل په څټ سپریدل
له ځان ځانی راته را پیښی معضلې یادی شوې
چی د برسات شیبو په ونو بوټو توی کړی اوښکی
د ناویسا مزدور په تنده می خولې یادی شوې

۶۹ - ۱۱ - ۷

---

اسرې چې مو د زړه خاورې ایرې شوې څه چې څو
هغه هم لور په لور خورې ورې شوې څه چې څو
تر څو به سپیلنو غونډې تکیږو په انګار
وروستۍ ریښې موهم د تمې پرې شوې څه چې څو
له ګوره به د ژوند درنا قه کوو څه
د هیلو ښکلې مېنې مقبرې شوې څه چې څو
هغه رشمې چې ستړې آرزومن زړګي وریشلې
افسوس را ته رسی د غرغرې شوې څه چې څو
د ناز د ښاپیریو زړه پالونکې اداګانې
د ژوند د ونو څانګو ته ارې شوې څه چې څو
هغه ښښتې چې خولې یې د خمونو پتولې
د لویو مزارونو کنګرې شوې څه چې څو
«پسرلیه» ته به څو یې لا د چا په تمه ناست
کوچۍ هم ایلاغونو ته سپرې شوې څه چې څو

٦٩ - ١١ - ٧

---

د سین په خوله کی چی یوه مسته ترانه اوښته
دژوند نغمې ته ښکلې هیله مستانه اوښته
د غرونو غیږ کی د یوې شنې درې په زړه کی وم پروت
د ځوانی ټک ته زړبودی په بهانه اوښته
هر څه نشه وو له سپوږمۍ مګر نشې وریدې
د مست ساقي په لاس کی ډکه پیمانه اوښته
د بوسې غوستي می په خوله کی پټ پټانی کاوه
ته وا د شمی سرې لمبې ته پروانه اوښته
په بیکرانه کایناتو کی د مځکی کره
لکه د سین په خوله کی ښکلې دردانه اوښته
نرۍ وزمې د ګلو څانګی اړولې سره
لکه په تورو ګورو زلفو کی شانه اوښته
په شنه دره کی د فرخار سین لکه مسته زرکه
په شنو وښو کی له مستۍ شانه ورانه اوښته
خو چی را ویښ شوم «پسرلیه» د غربت د عمر
یوه بله پاڼه د احساس د دیوانه اوښته

۶۹ - ۱۱ - ۸

نه تنها زما د زړه غومبري سوځي
له شغلو يې د ښايست بغوري سوځي
په سل لارو در نژدې شي بيرته راشي
سبا په خوا کې مې د خيال وزرې سوځي
دا يې تا راته غوز ايښې څه به وايم
چې په خوله کې مې د زړه خبرې سوځي
له پتنګ سره طواف د شمو څه کړم
چې د ناز په شمه زړه له لرې سوځي
څه ښادي غواړې د عشق له غمکدې نه
په دې بڼ کې د هوس سندرې سوځي
ګڼې هيلې مې لوګې د يوې ادا شوې
د ځنګله ونې چې څو وې ګورې سوځي
دا تر مومو نرم زړۀ څه ورته ټينګ کړم
« پسرليه » د عشق تاو دبري سوځي

۹ - ۱۱ - ٦۹

---

علت د بد مرغیو له ما خواره څه پوښتې
باعث د رالویدلو له آبشاره څه پوښتې
هوس د مزله هیر کړ د آرام بستر له ما
یو ن مستی ځپې بحره له کناره څه پوښتې
چی ډیر غریزې ډیره ورکوې د امن لاره
ساروانه له دُرا نه ورکه لاره څه پوښتې
له لطفه یې د خپلو عشوو مه در غزوه
قیمت د ملغلرو یی له تاره څه پوښتې
یو مست به د بل مست د مستئ حال وواییٔ څه
د تاك د مستئ وجه له بهاره څه پوښتې
نشه د سرلوبی وهی جنون سره ډغره
کیسې د ورانو ځالو له چناره څه پوښتې
هر زړه یوه دنیا ده،د هر چا بله منشا
د زړونو هواداره له هوائه څه پوښتې
طبیبه ، که کوټلیو ته مرهم لرې راځه
نور خوز د وینو زویو له پرهاره څه پوښتې
« پسرلیه » په غربت کې وطن مه را یادوه
بندي بلبل د حسن له فرخاره څه پوښتې

۶۹ - ۱۱ - ۲۰

---

د حسن خياله ، دکوترومسته !
دا مړه فضا کړه په غومبرو مسته
ورك ليونی به څنگه وينی په خوب
چی په بستر اوري د پرو مسته
غرور يې خاندي په بحرونو پوری
چی شي سيپۍله ملغلرو مسته
په کاڼو مه وژنئ جذبې د مينی
د غره دريا شي په ډبرو مسته
چی يې ښو ورته سلا کوله
آرزو می کړه پټو خبرو مسته
را ځه د وصل په خلوت خونه کی
نریۍنغمه کړو په سندرو مسته
نه تنها ته يي په گيڼو مينه
مسته کوکچه هم وه په زررو مسته
هيلو را پاڅئ ، ښکليو ښکته کورئ
را غله سرشاره د دلبرو مسته
« پسرليه » سوری دوزخ به وو، که نه وای
سپيره دنيا په عشوه گرو مسته

۶۹ - ۱۱ - ۲۲

له سترګو يې ښکاريږي چې محفل ښکلوي درومی
پر مخ پاته آبرو شوه چې سایل ښکلوي درومی
چې ويې وينم هيلی مې له زړه څخه تر ژبی
څپې د سمندر شي چې ساحل ښکلوي درومی
خيال مې کاشکی جوړه کړي په يوه منزل کښې ساه
په منډو د وزمو غوندی منزل ښکلوي درومی
چې ته تری جوړه شوې يې هر ستوری د اسمان
د لمر غوندی دنيا د آب وګل ښکلوي درومی
مجنون غريب ور پريزده د ښکلا د کډو ميره
د ګرد غوندی يې پېښې د محمل ښکلوي درومی
د لمر د شغلو کار څه وي په دير او په حرم
د مينې خاوندان حق او باطل ښکلوي درومی
« پسرليه » چې راضی يې هرکلي ته کړو د مړينی
تر څو به لا نفس خوله د بسمل ښکلوي درومی

۶۹ - ۱۱ - ۱۲

گناه که وی ، دمینی ده چی خیال ور اړوي
هر دم يې لکه سیوری تر دیوال ور اړوي
د لمر وړانگه که نه شوم چې يې خوله موښی پر مخ
ایکاش هغه شمال وای چی سور شال ور اړوي
لمبه يې د ښایست که ډیره ډیره خوږه نه وی
دا سوی نظر بیا ځنگه فی الحال وراړوی؟
فطرت غواړي انځور کړي يوه بله ستا په شان
خمونه د رنگونو يې هر کال ور اړوی
ما وي د عشق نغمه به می یو شان ږغوي زړه
د حسن تقاضا يې سُر او تال ور اړوی
اسباب نه وی مطرح تل په عالم کی د اسباب
وریځ تر غرونو چیرته پر او بال وراړوی
د حسن ښکارندویه يې وه مینه د « پسرلی »
رستم ته د شهرت توجه زال وراړوی

۲۳ - ۱۱ - ٦۹

تیری شه ، خوهیری مه شه ، د غمونو شپې اورځی
خدای دی نه راولی داسی د ګورمونو شپې او ورځی
چی زما په سترګی زړه بې یوه لمحه شی د قیامت ورځ
مګر نن سبا زدی پلونه په بمونو شپې او ورځی
څومره بوج بې د درد ونو چی زما په زړه را اینبی
غواړم هومره مبتلا په المونو شپې او ورځی
د ظالم دزړه له پاره یو عالم کورونه وران کړی
نه وړې شوې ، نه مړې په ستمونو شپې او وررځی
لا تر څو به زخمی زړونه له اوهامو مرسته غواړی
لا تر څو به اړوو په اړمونو شپې او ورځی
چی عدم ته بې راضی کړو « پسرلیه » زړه می غواړی
کاشکی طی شی د برینښنا په قدمونو شپې او ورځی

٦٩ - ١١ - ٢٣

---

مړه اولسونه د قاید ذهن او نظر بدلوي
لکه رودونه چې شگلنو کې بستر بدلوي
ړانده تر مرگه پټې سترگې په امسا پسې ځي
بینا هغه دی چې هم لاري ، هم رهبر بدلوي
که مراد زوږ وي له زړو ژرندو هم زوږ را وزي
د ژوند نغمه دخوند له پاره هنر ور بدلوي
ملوکه ، بطې ، هیلۍ نه دي د سبکلا سناپیرۍ
وزېسي ځه ، دزړه غوستني دي ، گودر بدلوي
له مکررو جلوو موړ شومه د لمر او سپوږمۍ
هنر د هغو مې زړه غواړي چې هنر بدلوي
خو ځان بدل نه کړو احوال به مو بدلیږي څنگه
چوچوړنی هم چې را لوییږي بال و پر بدلوي
نه زوړ منطق چلیږي یاره، نه زاړه فکرونه
زیرك زلمی په تاوده جنك کې هم سنگر بدلوي

۱۳٦۹ ــ حوت

---

مه ولئ ، مه ولئ د خيال د شاخسارونو ځالی
د رنګينيوآشيانيې ، د بهارونو ځالی
مايوس زړګی می ګرنګونو ته حسرت غورځوی
چی ښاروګانی زدي په دنګو چنارونو ځالی
له هر زړه څه غواړئ جذبه د ناکراری مينی
په لويو غرو کی وي د مستو آبشارونو ځالی
که ستا ليمی دی دنازونو د غمزو آشيانيې
د عاشقانو زړونه دي د پرهارونو ځالی
« پسرليه » تل دی زړه بسيا غواړم په مهر او مينی
تل دی آباد ی وی د ښکليو پندارونو ځالی

۱۳٦۹ ـ حوت

---

وښو سرونه هسك كړل ښايي بيا راځي بهار
چې بيا به مرور وي كه پخلا راځي بهار
نه كډې ورلېښلي ، نه چا تېزه مېنځ كې ايښې
لمنو ته به څرنګه تنها راځي بهار
چا وويل چې سبز هم د مېنونو له شامته
د وريځو په ډولۍ كي په هوا راځي بهار
څه ساه به يې شي جوړه د باروتو په لوګي كې
مجبور دى د موسم په تقاضا راځي بهار
د زخم تبسم وي ترجمان د سويو څړيكو
زموږ وطن ته ځكه په موسكا راځي بهار
راتلل يې ښايي بيا هم د حسرت دوړې را پرېږدي
نه موږ ورپسې تلاى شو ، نه په شا را ځي بهار
د هيلو شكوفې چې وي د ياس زلئ وهلي
راځي خو زمو خواته نيمه خوا راځي بهار
په زړه باندې مې كرځي په راتلو يې خبر نه شم
دا څو كلونه هر ځلي په غلا راځي بهار
«پسرليه»زه يې څه كړم چې وطن د ښاپيروته
رعنا راځي بهار او كه زيبا راځي بهار

۱۳٦۹ ـ حوت

---

دین او دنیا چی می په مینه کی له خیاله وځی
وړه دانه بې تکلفه له غرباله وځي
که د داني وزې مرغۍ لوزه له ځالي باسي
د تا په لته د مین د هیلو ځاله وځی
زه به مورچل د مینی ځنګه په ژوندون پریږدمه
په بادوریه کی به شپون ځنګه له خواله وځي
د عشق تبجن به له پخلا ښکلي څه خوله وغواړي
خوله می له ډیره حرارته له سواله وځی
خیال د حسن بي را ځي ، زړي می په زړه ګامونه
په کوم انداز چی د صحرا مسته غزاله وځی
که وړی هیلی می تر سره نه شوی غم بې څه دی
واړه کبان د ماهیګیر له خپاره جاله وځی
د مخ جلوو ته به یې سد شي د پلو پیڅه څه
چی یې د تورو زلفو بوي هم له سره شاله وځی
مړه ارمانونه می «پسرلیه» ګوندی پورته کړی سر
چی پسرلی شي او بیدیا ته جنون پاله وځی

۶۹ - ۱۲ - ۱۳

ماسکه ویل زه به یم او ښه به یم او تل به یم
نه ومه خبر چې په روانو شګو پل به یم
سوځم او دا سول مې چې سرور وربخښي نوروته
لاس کې د اطفالو د برات دشپې مشعل به یم
دا خواره واره حواس زما که داسې رسم شي
څه به یم ، د باد په مخکې سیورې د اوربل به یم
ژوند به زموږ څه وي په وسعت د کایناتو کې
بس د بارانی شپې لیونۍ بریښنا یو ځل به یم
خولې نه چې غاښونه ووځي دور یې د کمال کړنو
درست وجود که ورزیدو ښایي مکمل به یم
زړه مې دی صدف او د آرزو له ملغلرو ډك
پټ په توفانونوکې د لوی سمندر تل به یم
مه مې نیسئ ، پرې مې ږدئ په ښار د مجرمانو کې
غل نه یم ، که غل هم یم د تاندی بوسې غل به یم
حسن وعشق که یاره د ادا په لمسه وویشي
ګرځم به له تا خو د مجبورې مینې مل به یم
څه یم «پسرلیه» چې خپل زړه او خیال ته وګورم
غوټه د رازونو ، د فطرت دګوتو ول به یم

۱۳٦۹ ـ حوت

غمونه چی سر واخلي پښې د زغم وښويوی
چی واوره را ښويېږی کاڼی هم وښويوي
په يوې ښويه نګاه دی سترګو ډيردی ښويولی
را واړوه ليمې چی زړونه سم وښويوی
هر موج چی پښه د بل په سر ورايښې ښويېدلی
تيری په هغه هومره لويې يم وښېږوی وښوی
ستا مينی ته به بيا ګورو چی څوك وايي لغزش
پلو له مخه واخله چی عالم وښويوي
صحت کاشکی ساري وای خو مرض دی اخيستونی
ابليس چی ښويېدلی وی آدم وښويوي
راوړي می نن بيا ده ميخانې ته لويه هيله
که لطف دساقي را سره غم وښويوي
آخر به يو ساحل د امن هم وي « پسرليه »
بيړۍکه می نيزونه دم په دم وښويوي

۱۳٦۹ ـ حوت

---

شیلی تصور دی بیا له لری ځي راځي
له زړه نه می تر خولې پوری خبری ځي راځي
د مچ او د میږي نه وی له شمو سره کار
خلوت ته د مین په زړه خبری ځي راځي
هر چاته د زړه وینی نه بهیری لکه اوښکی
دی بر ګودر ته مستی عشوه ګری ځی راځي
د ناز له لوړو څوکو چی می اخلی مینه زور
د ساه هری څپې سره سندری ځي راځي
د هجر په بیدیا کي هم مطلق نه یم تنها
تر تا پوری د خیال ښکلې کوتری ځي راځي
له ځوانو ارمانونو سترګه نه کیږی د ښکلیو
که زړه ته وی ، که خیال ته ، یوه ځری ځي راځي
« پسرلیه » لابه کومه خوشحالي کړی سر را پورته
چی زړونو ته مدام د غم لښکری ځی راځي

۱۳٦۹ - حوت

---

چی بیا یې در لوګی کړم زړه به بیا وی که به نه وي
د ژوند د نی په خوله کی به نوا وي که به نه وي
چی ځې نو له فریاده خو می مه منع کوه
د نور د قافلو به هم دراوی که به نه وی
سر توره چی ماښام لکه لمر وختلې بام ته
د ستوریو په عالم کي به غوغا وي که به نه وي
دژوند پاڼی بې لوستو اړوم په دغه فکر
چی مرګ به د بل فصل ابتدا وی که به نه وي
څه وګرځه زما د خاطراتو په کوڅوکی
د ناز و ادا ښار به دی بسیا وي که به نه وي
چی زړونه شي پرې ټول د مزاحم فکر په رغم
د مینی په محفل کی به مینا وي که به نه وي
سبا سبا کوې ، سبا به هم شي ، نه پوهیږم
چی بخت به می له وخت سره پخلا وي که به نه وي
د شپې په لړمانه کی می د ګورم غوټی چاودلې
« پسرلیه » چی سبا به مو سبا وي که به نه وی

۱۳٦۹ - حوت

---

ژوندون وایی نعمت دی عدم داسی وګنه
که دیر د مینی کور دی ، حرم داسي وګنه
د میو په تندی کی چی وي څومره نشه پته
په مینه کی د حسن ستم داسی و ګنه
د ورو څرپی چی څنکه تنکی بوټی کړی وروینس
د ناز د تصور سنکالو هم داسی وګنه
یواځی خوشحالي کړي د ګل عمر څو شیبې
که زړهٔ ته ضرورت وینې غم داسي وګنه
ملا لکه په تا پسې چی سر زدمه په څمکه
په کفر می څه نیسې ، صنم داسی وګنه
د شپو تورو رګونو کی چی توری وینی ګرځی
زما د ژوند لیکونکی قلم داسی وګنه
هغه شان چی می مینی زړه دی ما نه ترهولی
له ځانه د تندی رهوسی رم داسی وګنه
لږ سر کړه د شاعر حسن تراش زړهٔ ته ورتیت
د قاف د ښاپیریو ارم داسي وګنه
روان یو خو هر ګرد نه دی په شمار د رهروانو
« پسرلی » دی لکه نقش قدم داسی وګنه

۶۹ - ۱۲ - ۱۳ - پېښور

---

برابی چی بیا په خیال د دلبر مست وم
تر سهاره لکه سین په بستر مست وم
په پیاله چی یې خولهٔ کیښوه بیا یې راکړه
لا له ورایه په لیدو په ساغر مست وم
ممکن ومی بخښی خدای واړه جرمونه
که له ښه مرغه په ورځ د محشر مست وم
بیا می مستی سترگی ولیدې په خوب کی
بیگا څملاستم هوښیار خو سحر مست وم
چی روښي اوبه شراب کړی په کتلو
زه د ناز د ښاپیرو د گودر مست وم
چی‌هواسو می پلمې غوښتلې شور ته
د رباب غوندی له ځایه هنر مست وم
لکه رود د غره په کاڼو لا مستیزي
په وطن کی په سفر او حضر مست وم

٦٩ - ١٢ - ١٤ ـ پيښور

---

سکوت د نيمی شپې چی مي په سر اخيستی دي
آرام می لکه سين را نه بستر اخيستی دی
د شمو په مړو اوښکو وی د هر سړی نظر
له سويو پتنګانو چا خبر اخيستی دی
را ووځه ماهيت د ريا کارو کړه افشا
نقاب تل د تيارو له مخی لمر اخيستی دی
ناری ورباندی مه وهئ د فکر خاوندانو
سمند د ارادو می را نه سر اخيستی دی
د عشق د شور منکره شنو کوترو ته خو ګوره
چی غولی دحرم يې په غومبر اخيستی دی
د حسن ترانې می بيا په ذهن خورې شوې
که شرنګ د ښاپيريو لوګ ګودر اخيستی دی
هر خيال می دی « پسرليه » له خپل فکره بوتيدلی
صدف چيرته له چا څخه ګوهر اخيستی دی

۶۹ - ۱۲ - ۱٤ ـ پېښور

اشنا ، را ځه ، فرصت در سره پلی راوله
پسرلی د نیکمرغیو تر لاس نیولی راوله
څادر ورباندی خپور کړه ، له مینا سره کړه پام
شیخان کرځی محفل ته ساقي غلی راوله
چی تل تر او تازه وی په شبنم یی څه سپارې
د هیلو گل د زړهٔ په وینو ولی را وله
د خدای په دې مخلوق چی یې رنځ نه لوریده
په ټيټو سر لکه سیوری شرمیدلی راوله
د نویو خوشحالیو وړکه نه یو نو خاونده
په تیرو بهارونوکي یې سنکلی راوله
قسمت می گریز پا دی که شي خپلو پښو ته خلاص
خپل کور ته دا شیلی لاس تړلی راوله
امید که راولې چی په تیارو کی نه شي تور
د لمر په سمندر یې لمبولی راوله
یا ما در سره بوځه شنو لمنو ته « پسرلیه »
یا بوی د شنو شوتلو نستیځلی راوله

۱۳٦۹ - حوت

---

چې خپل ستړی خیالونه جوړوم او ورانوم
وریځ غوندی شکلونه جوړوم او ورانوم
چې لاس د تصور می څومره بر کړ اشتیاق
کری،شپه محفلونه جوړوم او ورانوم
کاروان به می د مینی د اظهار ولیشي څنګه
آرزو ته محملونه جوړوم او ورانوم
بیځایه د پندار له لوړو څوکو کوزیدم
د فکر مورچلونه جوړوم او وراونوم
خیمه د روایاتو به می څو وي سر پناه
نیمګړی بورجلونه جوړوم او ورانوم
په ماته دړه ناست یم او په مرسته د وهمونو
څپو نه ساحلونه جوړوم او ورانوم
آخر هسی نه شپه مو په بیدیا شي «پسرلیه»
مزل ته منزلونه جوړوم او ورانوم

۱۳۷۰-حمل

---

په خدای می سپارم مساپری اوښکی
زما له زړهٔ څخه خبری اوښکی
د تا پاسته زړه ته یي لار ونه کړه
ما خو وې سوری‌ربه کړی ډبری اوښکی
څو به له درده ضایع کیږی را نه
تر ملغلرو ملغلری اوښکی
ستا تصور ته می په سترکو کی تل
غومبر وهی لکه کوتری اوښکی
ستوری کرمه گوندی لمر وریبم
زړه می ترلی دی په هری اوښکی
د رزه له اوره می په مخ وګوره
د پتی خولې ویلی سندری اوښکی
چیرته زما ،چیرته دشمی ژرا
د وصال اوښکی وی بهتری اوښکی
« پسرلیه » نه شوه مسلمانه راته
ورته می تویي کړې کافری اوښکی

۷۰ ـ ۱ ـ ۷ ـ پیښور

---

د وصل شپې ته دی سبا نه راځی نه دی راځی
په خوله که شوخه تمنا نه راځی نه دی راځی
د مینی تنده می درې پاره شپه ترې گرځوی خیال
دا که له ښکلې استغنا نه راځی نه دی راځی
دا به لا ځوک وی چی غوغا به د سکوت نه اوری؟
که می په خوله ورته وینا نه راځی نه دی واځی
لیونی زړه می غواړی نوی حدي ، نوی مزل
که تللی عمر کله بیا نه راځی نه دی راځی
د زرښت پښې چاپی کومه گوندی خوب یې یوسی
که د پرهر په خوله خندا نه راځی نه دی راځی
ماشوم زړگی می د درواغو په وعدو دوکه کړه
که دی په خوله ورته ریښتیا نه راځی نه دی راځی
شهید د مینی یې د نور په چینو ولمبوئ
که جنازې ته یې ملا نه راځی نه دی راځی
ته راځه ، ومی کره بیا په خیال د ناز گلونه
که«پسرلی» له هغې خوا نه راځی نه دی راځی

۷۰ ـ ۱ ـ ۱۰- پیښور

بیگا مو د سرور نغمه له تاره ورکیده
بې تا ، نسخه د ودی له بهاره ورکیده
بیگا وم تر سبا پوری د هجر شپې اخیستی
د ستوریو په کوڅو کی را نه لاره ورکیده
هوا می ستا د وصل د فکرونو بحر مست کړ
څپه به د تازه څپې دپاره ورکیده
د سلو نورو څرکو په لټون به وه وتلې
چی کله به می څرکه له پرهاره ورکیده
آرزو به می په ټول د آرزوگانو کی شوه ورکه
خبره چی می خوله کی درته یاره ورکیده
لیمې چی دی نیم مستی په محفل کی اړولی
سایه د امنیت د زړهٔ له ښاره ورکیده
د وصل تصور دی زما له ذهنه اخیست لاس
که واوره وه له سره د کوهساره ورکیده
نشه وه خم کی ډوبه، د مینا گوډیده ساه
ساقی نه د مغان ښوولې لاره ورکیده
«پسرلیه» اندیښنې می بې هدفه چورلیدې
د زاڼو د سر میره له کتاره ورکیده

د جوزا لوموړی ورځ ۱۳۷۰

---

پام مې له آهونو سره وکړه ګوره ووتل
سره سووکی پاڅیدل له سوی سکوره ووتل
ستا لاره به ګوری د وفا په انتظار به وی
سل ځله که شنه واښه زما له ګوره ووتل
چیرته به له ژونده لاړ شو بیا مو لار په ژرنده ده
ډیر سترې موجونه د دریا له شوره ووتل
ورکه یې په برخه ده ، که بوی هم د ګلونو وی
هغه چې زموږ غوندی له کلی کوره ووتل
مینه وی مطلب له ژونده ، تور سبه یم په مینه کی
توزو چې معنی ومونده درست له توره ووتل
خپل وایه هغه ته چې یې سخته درنه بیل نه کړی
تور لوګی په منډه له بل شوی اوره ووتل
موږ یې « پسرلیه » پخولو ته ساتلی یو
ګڼ واره کبان د ماهیګیر له توره ووتل

خیبر پلازا - پېښور جوزا ۱۳۷۰

---

بلبله راوړه هنر پاله مینه
چې شي له حسنه سره سیاله مینه
پتنګان مومي په لمبو کې سکون
په هره ځانګه نه زدې ځاله مینه
خدایه په مرګ هم رانه بېله مه کړې
د واره عمر انډیواله مینه
یو سوړ دوزخ دی تش له مینې ژوندون
یو دم مې مه ووزه له خیاله مینه
له زړه د ناز د برجل سیوري کړي جوړ
له دواړو کونو فارغباله مینه
غواړم د لمر تر شغلو هم « پسرلیه »
په سوي زړه کې بې زواله مینه

جوزا- ۱۳۷۰

د هسك په شنه گومبزه رونه ستوري ښوييدل
كه زما ستړی خيالونه ستا په لوری ښوييدل
له ډيره اشتياقه می الفاظ ورته په خوله کی
موجونه شول د سين چی له پرله پوری ښوييدل
چی حال می ورته کيښ د قلم پښبه نه تم کيده
معنا ډيره صفا وه چی پری توری ښوييدل
د حسن لوړ درشل ته می څبلی اميدونه
د دنگو غرونو سر ته پراته سيوری ښوييدل
د ناز په ننداړتون کی يی د ښويو نظرونو
څوك دوری بهيدل او څينی هوری ښوييدل

۱۰-۳-۱۳۷۰

---

چی غمونه می په زړه را وریدل او څخیدل
شمی ما نه زده کول دا سوځیدل او څخیدل

نه په لطف ایساریږم ، نه می زور شی تم کولای
د باران غوندی می کار وی بهیدل او څخیدل

ورته وګوره په مینه ، دعاشق سړی فطرت دی
د کنګل غوندی له مهره تودیدل او څخیدل

په محفل کی یې د وصل ، مین زړهٔ غواړی له بخته
د خولو غوندی له شرمه ویلیدل او څخیدل

تورو وریځو غوته زړونه چیرته وړیء د څه له پاره
زما زړه ته ګورئ ، زده کړئ ژړیدل او څخیدل

چا ریښې وزغلولې ، چا آسونه زغلولي
زموږ زړونه لکه پرخی اوبیدل او څخیدل

چی په جنګ کی می «پسرلیه» وینی نه شوای بهولای
رونه څاڅکی می لیمو کی غړیدل او څخیدل

۱۰-۳-۱۳۷

---

چی حان یي وخوځوی سترگو کی د نازموجونه
دلته زما تصور لاندی کړی د ساز موجونه
د ناز یادونه یي هم فکرتیل وهی ، هم یو بل
لکه د بحرد توفان «کاراته باز» موجونه
ژاړی ورکیږی ، مگر بیا په ټیټ سر سین ته ورشی
په بال و پرچی د وریځو کړی پرواز موجونه
د دیکتاتور له سره تښتی د عمران فکرونه
کورونه وران کړی آموخته په تاخت وتاز موجونه
د اولسونو احساسات چخهی کیدلای نه شی
گوره تر ځو به تر پښبو لاندی کړی جهاز موجونه
تندی دی مه تریووه بحره د ځپو په هڅو
د ژوند تصویر ته ورکوی پوره پرداز موجونه
نه په افراط کی شته څه عمق ، نه په تفریط کی څه زور
د سین په منځ کی ځی د سین واړه ممتاز موجونه
« پسرلیه » مات شي د نمرود غرور په گوډی ماشي
توفان د کونډی له تنوره کړی آغاز موجونه

۱۳.۳.۱۳۷۰ - پیسور

ته یې مگر ولیدې چې سپینه شوه
وچه د سپوږمۍ په مخ کې وینه شوه
ستا له ښکلی مخه مې د غره لورې !
هره یوه تیزه یوه شیرینه شوه
لار د حسن هم مگر په مینه وی
هره یوه ادا دی مینه مینه شوه
نه اړوی سترگی چې هینداری نه
ښکاری چې کلرنگه مې گلچینه شوه
مخ د آینې د ښکلولو دی
ښه شوه چې بد بینه مې خود بینه شوه
ومې غوړید زړه کې د ښایست بهار
طبعه مې « پسرلیه » چې رنگینه شوه

جوزا - ۱۳۷۰ پیښور

---

یبګا می ستا په یاد له زړه کبلۍ را خوټیدې
د ذهن له تیارو نه می سپوږمۍ را خوټیدې
ژوندی می شول د سرو لبانو وړی ارمانونه
له خاورو می د حسن سرې غوټۍ را خوټیدې
زخمه دی د یادونو لګیده څومره په ځای
له رګ رګ د احساسه می لنډۍ را خوټیدې
د زړه په سر تناکو څومره ستونځی را بللې
د تاندو هیلو لارو کي غونډۍ را خوټیدې
د مسکی خولګۍ یاد دی کړم د خپلو اوښکو تږی
عدن شو زړه له تله یې سیپۍ را خوټیدې
خولې یې د حیا وې د حیات د اوبو څاڅکی
له تورو اوږدو زلفو یې زینډۍ را خوټیدې
«پسرلیه» هغووختو ته به بیا ورګرځو کله
چی سترګو ته له هر څه ښاپیرۍ را خوټیدې

جوزا - ۱۳۷۰

---

ساقی تیاره ژوندون ته می رڼا راوبوله
دتللی ځوانۍ شوخی شیبې بیا را وبوله
قلقل دمینا بس دی ، که نغمه نه وي دچنګ
د ژوند تشو لفظونو ته معنا را وبوله
شپنه یاره ، زلمی زړه دی توده مینه کړه څه
د نی لوګو کوڅو ته دی نوا را وبوله
د غم په دربلو کی خورم ټکری لکه ړوند
سپوږمۍ د تسلی د غره له شا را وبوله
تر څو به د حسرت په دوړو پټ کړځوم زړه
«پسرلی» شه ، سپیرو دښتو ته ښکلا را وبوله

جوزا - ١٣٧٠

---

د غرونو باده یوځل زموږ په لوری راشه

لږ تر زړه پوری راشه ، ښه په زړه پوری راشه

چی د تودوخی لمر دی بیا له نظره نه کړی

د ګورو ونو لاندی ، په سیوری سیوری راشه

دا دسپیرو کیموپونو د هاړ غرمو وهلی

په شپه په ورځ دی هر وخت لاری ته ګوري راشه

که د پامیر د شمال مخ ته وی غرونه ولاړ

ای دسپین غره نسیمه ته خو څه دوری راشه

له زړه می مه ووځی ته ، زړهٔ می را وتخنوه

لکه ځپی چی د سین په سین کی ښوری راشه

«پسرلی» دی لاره څاری ، د دنګو غرونو باده

د تا راتلو می ژوندون له یاسه ژغوری راشه

جوزا ۱۳۷۰

---

ماوې یوه شپه به غزوم په مینه تا ته شپیلۍ
خو څه احوال به درته وواېي دا ماته شپیلۍ
میږې او ورې نه دی را پاته ، حتی سپی هم نشته
د طبیعي ژوند له هستی ده بس را پاته شپیلۍ
دنیا کڼه ده د ویشتلی زړهٔ فریاد نه اوري
عبث له درده اړومه هری خوا ته شپیلۍ
ګناه د چا شوه چې د زړه په ژبه نه پوهیږي
ملا په کاڼو ماتوي ولی میراته شپیلۍ؟
له زخمی زړهٔ می مګر واورمه د زړهٔ خبری
دا چې لګیا یم جوړوم د زړهٔ نوا ته شپیلۍ
چې د تینګونو د زنځیر شرنګی دنیا کڼوي
په دې محشر کی «پسرلیه» پټه ساته شپیلۍ

۱۳۷۰- پیښور

---

سپیره ژوند دوکه کومه بیا د داسی شپو په هیله
چی می زړه وستا موسکا ته للمی گل د ورو په هیله
په وچ غره کی تږې زرکی چی روڼې چینې ته درومی
زه هم دغسی درتلمه ستا د خولې د هو په هیله
ستړې بخته بیا را پاڅه ، په زړو پلونو پل کښېږده
ښې شیبې مو کړه ایساری د لا ښو شیبو په هیله
څو به زما په زړکی اوری ، څو به زما په خیال دوړیږی
هغه خاوره چی بهار یې و درنګ او بو په هیله
چی امید لرو له بخته ، چی وفا غواړو له وخته
یوو ساده مرغان په دام کی د ښکاری د ښو په هیله
نه د وینو سیلاب وچ شو ، نه فضا له لوګی پاکه
لا تر څو به لاری څارو ، لا به ناست یوو څو په هیله
د ګلونو وچو شونډو ، پتری ونیول «پسرلیه»
د نری باران په تمه ، د یو غوړپ اوبو په هیله

۱۳۷۰- پیښور

---

له ډیری صفایي شوه سر تر پایه آینه
د مستو بهارونو قدنمایه آینه
بیګا چی لکه لمر د بام په څنډو ځلیده
سپوږمۍ ورته نیولې وه له ورایه آینه
چی تاو د محبت زړه ویلی نه کړی ، نه رونیږی
د غره توره ډبره وی له ځایه آینه
تر حسن یي د حسن ښکارونکې یم ځبلی
د چا په زړه کی ماته مه شه خدایه آینه
د مینی حسن دا دی چی د حسن اخلی ناز
هر ګز نه وی خود کامه او خود رایه آئینه
ډبری ویلی کیږی ستا د مهر په کتلو
له داسی نګاهونو لری پیایه اینه
« پسرلیه » په کین مه اخله صفا له ښکلی زړه نه
هر څوک ګوره ساتی له ګل و لایه آینه

۱۳۷۰ـ۳ـ۱٤ - خیبر پلازا

---

هغه دی هیر دی که په زړه ، چی ستا په لور درتلم
لکه د غره‌ء مستی اوبه تل به په شور درتلم
چی لا بهیر د زمانې بی سیکی کړی نه وم
لکه مست قو د سمندر په څپو سپور درتلم
سپوږمۍ ویده وه ، شپه آرامه ، او ته هم پرته وې
زه لکه خوب د ځوانی سترګو ته په زور درتلم
د سینې تاو می لا په لار کی مانع نه پیژنده
لکه په وچ ځنګله د کانو کی بل اور درتلم
تمامه ورځ به دی بې واکه د دیوال سیوری وم
تمامه شپه به لکه ویښ ستوری سرتور درتلم
بې تا می یوه لحظه آرام په سوی زړه و حرام
له هره ځایه به مجبور لکه میخوړ درتلم
زلفی خورې کړه چی حواس می بیا خواره واره شی
پخوا خو تل لکه « پسرلی » په وطن خپور درتلم

۲۵-۳-۱۳۷۰ - پېښور

---

چې را ځوړلې بورې وراړې اندېښنې شي
مېکدې به د خاطر ماتم کدې شي
اوږدې زلفې مې شي يادې وونږمه
هسې نه د فراق شپې داسې اوږدې شي
تصور يې د ليمو تر ليمو شوخ دی
دغه شوخې ښاپېرۍ کاشکې ويدې شي
د عشق تاوه ډير مې مه نرې کوه زړهٔ
چې لبريزې به د خيال د سين ځپې شي
لطيف خيال مې شي ګلبڼ د ښاپيريو
چې را يادې د ځوانۍ ځوانې لمحې شي
د زړهٔ لمره د وختونو کنګل مات کړه
چې روانې د بيلتون سرې شيبې شي

۱۳۷۰-۳-۲۲ - پیښور

---

بیګاه یې بیا په هیرو خاطرو نشه کیدم
ورو ورو را یادیدلې او ورو ورو نشه کیدم
د حسن میکدې ته می وه خپله مستی وړی
د سیڼ غوندی له خپلو خمیازو نشه کیدم
د سرو شونډو په ځمب کی یې وه ځومره نشه پټه
وعدو نشه کولم په پلمو نشه کیدم
په شوق چی می د ناز برجل ته اخیستل ګامونه
په تلو نشه کیدلم او له پښو نشه کیدم
په هر څه کی نشه وه د ساقی سترګو کړلې
توبې شو ی را نه ماتی په توبو نشه کیدم
بادې لا په تاکونو کی پل اخیست پالی پالی
زه مست به یې له ورایه په ښکالو نشه کیدم
را یاده به شوه جام کی ننداره دهغه حسن
په سین کی د سپوږمۍ په تماشو نشه کیدم
په تورو ځیږو تیږو کی مینا را ښکاریدله
احساس می تصور کړ بانه جو نشه کیدم
د حسن استغنا یې را نه واړولې سترګی
نشه وم دیره ښه شوه لا به څو نشه کیدم
چی خپل لیونی زړه را ته « پسرلیه » ږغولې
د مینی په نغمو لکه درخو نشه کیدم

۱۳۷۰-۳-۲۲ - پېښور

---

ته وې ، تمکین و، استغنا وه د سپوږمۍ په شپه کی
بهار و، غرونه وو، دریا وه د سپوږمۍ په سپه کی
حیا که هر څو پتوله پتیدلای نه شوه
په خوله می شوخه تمنا وه دسپوږمۍ په شپه کی
چی ستا یادونه می وړانګو په ذهن وغوړول
نغمه وه شعر و، مینا وه د سپوږمۍ په شپه کی
ما چی د تا له تغافل څخه بهره اخیسته
له عسکری چاونۍ نه غلا وه د سپوږمۍ په شپه کی
ستا تصور تر لاس نیولی بڼ ته وروستمه
په هر طرف ښکلې موسکا وه د سپوږمۍ په شپه کی
په سرو کلونو چی به سپینی پلوشې غوړېدې
د ښاپیریو تماشا وه د سپوږمۍ په شپه کی
د ځمکی لورې ! په اسمان کی دې څه اور شیندلی
په لری ستوریو کی غوغا وه د سپوږمۍ په شپه کی
دغه ګلونو چی زیښنلی رونې پرخی نه وی
د « پسرلی » د زړه ژړا وه د سپوږمۍ په شپه کی

پیښور - ۲۷/۳/۱۳۷۰

---

خدایزده بیګاه زما په سر کی د مستۍ ځوانی وه
که د آسمان په شنه تامبو کی د سبوزمۍ حوانی وه؟
د تاك د لور غوندی یې یوه هم هوش ربایه نه وه
د تاندو څانګو که هر څومره ګلالۍ ځوانی وه
بهار له ځمکی جنتونو ته کړکۍ خلاصی کړې
که ستا د حسن د خیال د رنګینۍ ځوانی وه
څوك وایي تللی عمر کله هم بیا نه را ګرځي ؟
بیا په دوره باندی راغلې لیونۍ ځوانی ده
ستا خاطرې می په شنه زړهٔ باندی ټوپونه وهل
تازه بهار و، شنه لمن وه ، د هوسۍ ځوانی وه
په سپینه زیره پروانه کړم چا د ناز د شمی
یاره پخوا که کله کله د ځوانۍ ځوانی وه
لکه « پسرلی » کی د زړو ونو تازه شکوفې
زما د ځوانو هیلو ستا غوندی تنکۍ ځوانی وه

۱۳۷۰ - جوزا

ناله له دردِه سر توره ووځی
فریاد د خوږو له زوره ووځی
ښکلي عشوی يي چی زړهٔ ته سپارم
مستی ښځی له توره ووځی
پریږده لمبه شی پریږده ایره شي
زړهٔ نه دی دود چی له اوره ووځی
په نظر ساتم نظر له ډاره
ورك شي ماشوم چی له کوره ووځی
منجمد یم هم سپیره صحرا شي
خاوری شه زړهٔ چي له شوره ووحی

### ۷۰ - سرطان

د سوچ له کوره لری په ځنګله کی د ماښام
د خیال په غیږ کی ناست وم د ماشوم غوندي ارام
اسرۍ می را بللې وې چی نن مو ښایسته کړو
نه فکر د پرون و نه سبا ته زما پام
بیشکه نه جمشید وم ، نه می تخت و نه می تاج
خو سر کی می نشه وه د ځوانۍ د جم د جام
د هیلو په مزله کی وی دژوند د درا شور
تر هغه چی انسان وی نه کامیاب او نه ناکام
هر باد چی د احساس د کلا ور را ټکاوه
راوړه به یې له ځان سره د ښې سبا پیام
د ګل له پستې خولې می اوریدې خوږې سندری
له ښه زړه نغمه خیز و ، که می در و که می بام
تر لمر تر سپوږمۍ سپین و د پندار د لیلی حسن
د غره تر راده مست و د زلما د سین خرام
ځوانی وه ، خوشحالی وه ، زه او ته سره پخلاو
نه هجر نه غربت و ، نه غمونه نه آلام
هغه لمحې به بیا کله راوکرځی که نه؟
که یم به زړبودۍ کی علامت د استفهام؟
هاله به « پسرلیه » افسانه وای د ژوند ښکلې
چی وای یې د آغاز غوندی په زړه پوری انجام

۷۰ - سرطان

---

هر تیري او تجاوز کوي چې پست شي
سیل چې حومره مخ پر ځوړ ځي هومره مست شي
توپانونه هم غر نه شي خوځولای
خار وخس په تش پوکې په خیز وجست شي
ګاو پرست او مار پرست کې سپیتوب شته
خو لاس واخله له هغه چې خود پرست شي
جوړ زنځیرشي ترې پیلان پرې تړل کیږي
چې وړې وړې کړۍ سره پیوست شي
د طعمې تمه د کب تر ستونې خیژي
خو څپو ته یو د خلې سیوري شست شي
ستا په مینه به غوریږي او رژیږي
« پسرلی » که دي زړځلي نیست او هست شي

۱۳۷۰-٤-۸ - پیښور

---

سوی نظر می دی له ښکلیو جلوو مه ګرځوه
په سین کی ږوږدی قو له مستو څپو مه ګرځوه
وعده که وه د ماتولو ، نوم یي مه اخله ډیر
ماشوم زړګی می په دې ماتو شیشو مه ګرځوه
ساقی ، نشې با درنه هیر کړ د مستانو درنښت
پیالی را وګرځوه ، موږ تر پیالو مه ګرځوه
تر هر نهال لکه پیروتې جاریدلی نه شم
هوسه ډیر می د هر حسن تر پښو مه ګرځوه
د لیونۍ مینې په کچه می صحرا راګوره
د غرو نسیم د ښار په تنګو کوڅو مه ګرځوه
د اوږدو زلفو تصور دی دومره مه را لیږه
رنځور زړګی می ډیر د ژمی په شپو مه ګرځوه
پریزده چی باد یي ایرې یوسی د وفا کلی ته
د مینی سوی پتنګان له لمبو مه ګرځوه
د جنت بڼ د فرشتو په ورتلو نه ورانیږی
شرمه له لاری می حسینه آرزو مه ګرځوه
که په لوی لاس می « پسرلیه » جنون نه پاروی
لیونی خیال می په ګلپوشو درو مه ګرځوه

۸/٤/۱۳۷۰ - پیښور

---

د مخ رڼا یې څه عجب که له حجابه وته
د ناز جلوه یې پورې اورې له مهتابه وته
د لمر شغلو ایستل سرونه د شپوږمۍ تر درځې
که دې جلوه وه د سپین مخ چې له نقابه وته
ستا په محفل کې ، ستا له لطفه وم کوربه د بهشت
نوره خبره له گناه او له ثوابه وته
د ساقي لطف را سره کړه بدرگه د نشې
د عمر کډه مې له پولې د شبابه وته
آدم چې حسن کړ له مینې سره غاړه غړۍ
هره نغمه یې وه درخو چې له ربابه وته
« پسرلیه » زه به هم د عشق له تمبولۍ را وځم
ډوبه بیړۍ که لکه خلې له گردابه وته

۱۳۷۰-٤-۹ - پیښور

---

کومه مهرویه به د زړه په لته بیا راځی
د تیاره زړهٔ خلوتکدې ته چی رڼا راځی
په سپینه زیره چی می زړهٔ غواړی وفا له ښکلیو
د تنکی ګل غوندی په ځان پوری خندا راځی
ښکلې نګاه یې وه غمزو او کرشمو کې پته
ماسکه ویل چی د جنت د حورو ورا راځی
یو عالم زړونه ، هوسونه یې را وینښ کړې جلوې
لکه دلبر سترکه چی کله هم تنها راځې
نګاه یې یوه خوا ، بله خوا اړوی نازد حسن
لکه په غرو کی چی کږه وږه دریا راځی
له ړنو ستورو سره ناست وم تر سهاره زه هم
دا ګنګوسه وه چی د بام سر ته بیګاه راحی
« پسرلیه »داسی می راځی خیال ته تیر یادونه
لکه چی بحر ته سیندونه په نڅا را ځی

۱۳۷۰-٤-۱۰ - پیښور

---

هر غم ته چی ما غیزه پرانیستې ده
دوړو ته بیدیا غیزه پرانیستې ده
حسن او مینه هم وبوله نوك او وریځ
موج وته دریا غیزه پرانیستې ده
راشه ، لکه جم په جام کی وگوره
چاته می صهبا غیزه پرانیستې ده
وخت په سره تبۍ ولی ولاړ نه وي
نن ته چی سبا غیزه پرانیستې ده
راغلو له عدمه خو په هر قدم
گورو عدم بیا غیزه پرانیستې ده
توره شپه پرده مگر د غله وکړی
شیخ ته چی قبا غیزه پرانیستې ده
بې له پرهرونو نه زما د زړهٔ
څریکوته بل چا غیزه رانیستې ده

۱۳۷۰-٤-۲٦ - پېښور

---

پوه نه شوم چې چېرته ځم له کوم لوري راغلی یم
ځوك مې وړی او ولی، د ځپو په واك کې خلی یم
هره ساه مې بیا بیا ړنګوی او جوړوی وجود
مار غوندی له خپله پوسته زر ځله وتلی یم
یوه لحظه مې تم نه کړل وختونه مې له غېږې ځي
هسې یې دسین د ځپو مخته درولی یم
زه د زمانې په شا یم سپور که دا زما په تخت
ستړی یم خو پوه نه یم چې سپور ځم او که پلی یم
دومره مې د شرم په خولو مه لمبوه عشقه
تل په خپلو اوښکو لکه بله شمعه ولی یم
هغومره به نه وی الییلی چا د لاندی مږ
څومره چې مې اور د خپل احساس زه الییلی یم
ماته « پسرلیه » بس دعا کوه پرېږده مې نور
زه اوس د ناکامو ارمانونو د ګور تخلی یم

پیښور - ۲۸-٤-۱۳۷۰

---

بیګاه چې په جامونو کی نیشو وهلې منډی
په سر کی می د حسن اندیښو وهلی منډی
چې څومره می د ناز سروه په خیال کی لوېدله
هغومره می په زړهٔ د یاد ریشو وهلې منډی
یو زه ستا په موکب پسي د ګرد غوندی ځغاستلم نه
د ستورو په بامونو پلوشو وهلې منډی
عشوو د شیرین حسن جوړاوهٔ او ړنګاوهٔ
د عشق په بیستون کي چي تیشو وهلې منډی
یوازی یي آرام زما له زړهٔ نه دی اخیستی
دسین مستو ځپو په خرخشو وهلې منډی
« پسرلیه » خاطرې د شوخو سترګو می خاطر کی
کبلیو د آبدان په شنه‌ورشو وهلی منډی

۱۳۷۰-٤-۲۹ - پیښور

---

راغلې ، په سترګو می تر اوښکو پسته نه کینستې
لکه له تاره لتهیدلې نغمه نه کینستې
د حورو میرې یوې نګاه دی کړم مجنون د کیسو
لکه په زړه کی می دښکلیو کیسه نه کینستې
ما ویل تبه به می وشلیږي خو نه وشلیده
په تبجن زړه لکه د تبی خولهٔ نه کینستی
لکه وحشی کوتره راغلې دناستی په نمط
خولکه ورشي تر ساحله ځپه نه کینستې
زما په زړه ناستې ، له زړه نه می ولاړه مه شي
لکه په خپله خولګۍ خپله پلمه نه کینستې
ناسته ولاړه دی وای تل کاشکی د عطرو په شان
له کاله وروسته راغلې نیمه لمحه نه کینستې
بیګاه می خوا کی ناکراره شمه هم کیناسته
ته تر سبا لکه د مینی لمبه نه کینستې
په دې راتلو به دی شي جوړه د « پسرلی » ځه دمه
راغلې او دومره لکه پټه بوسه نه کینستې

۲۹/٤/۱۳۷۰ - پېښور

---

یامی هوش په میکده کی پیڅولونه ټولولای
یامی ستا له خیالی حسنه خیالونه ټولولای
د مستۍ په مست محفل کي چی نه هوش نه هوښیاری وای
د ساقی له مستو سترګو مو کېلونه ټولولای
چی د مینی خوږې شپې پرې چراغان شوای تر ابده
په اسمان کی مو دستوریو مشعلونه ټولولای
دمین په زړهٔ به ولی تیارې تللې او راتللې
که مهرویو په محفل کی وربلونه ټولولای
مجنونان به د سرو شونډو قارونان د زمانې وای
پتنګانو که دی شمې ! سره لالونه ټولولای
د مین د سودا شپې به ولی دومره اوږدیدلې
که ښایست د تورو زلفو خپاره ولونه ټولولای
چابه نه بلل له عقله محروم شوی «پسرلیه»
که مستانو خالی کړی بوتلونه ټولولای

۳۰ - ٤ - ۱۳۷۰

---

چی حضور ته یې له ښکلیو امیدونو سره ولاړم
د ګلونو ننداړو ته له ګلونو سره ولاړم
ستا تمکین د کانو غر و، زه د چر نري اوبه شوم
د اثر په لته لته فریادونو سره ولاړم
ګردابونه راته کوږ چې اوس غیر په مینه ورکړم
چې د امن له ساحله له موجونو سره ولاړم
چې د مینې په مجمر مې سپیلنی غوندې پل کیسود
فریادونو سره مل شوم ، له آهونو سره ولاړم
تیغ د ظلم چې جلا کړم لکه نی له نیستانه
لاس په لاس کې د غمونو ، له داغونو سره ولاړم
حقیقت چې ویرونکی حیره لر حه را سکاره کړه
د خیال غیر ته مې بیرته له وهمونو سره ولاړم
برابي چې شپې په هسك کې کري په ستوریو باندې کاتې
د طفلی په لته زه هم له وختونوسره ولاړم
که مې غواړۍ ما به مومۍ د دردمندو په تولی کې
زه چې تلمه له دې سرایه له دردونو سره ولاړم
بیا د شعر حپه راغله په غنکی غنکی « پسرلیه »
د حورانو انجمن ته له خیالونو سره ولاړم

۱۳۷۰ - سرطان

« ستا یاد چی می په مینه په سودا وغورروی
هنداره په تیارو د لمر رڼا وغوړوی * »
د حسن معجزې دی ، یا دمینی کرامات
په کل جهان چی سیوری د هما وغوړوی
هغه لیونی څنکه له موجونو داروی
بستر چی د خونی نهنك په شا وغوړوی
د حسن استغنا یې لاس د سترګو پام ته نیسی
لمن که سحر هم ورته بیا بیا وغوړوی
سکلا او مینه ځپل دی ځپل په ځپل باندی خوزیږی
نیزونه ځادرونه په دریا وغوړوی
تیارې می د حسرت په غیږکی نیسی « پسرلیه »
ماښام چی توری زلفی شاوخوا وغوړوی

---

* – در عالمی که یاد تو با ما مقابل است
آئینه میکشد برخ سایه آفتاب
« بیدل »

۷ - ۷ - ۱۳۷۰

---

درځئ د فکر کږی په بل لوری واړوو
د عشق د کهکشان په یوه ستوری واړوو
د لمر د پلوشو غوندی د ژوند په سپیره ځمکه
کړو مراندی سره غوټه ، پرله پوری واړوو
تورونه دی د مینی چی معنئ ورکوی ژوند ته
له تور سره د مینی لکه توری واړوو
چی عشق مو بی نیازه کړی د لمر له پلوشونه
جنت کی د طوبیٰ په ساړه سیوری واړوو
د ستوریو په بهیر کی به د مینی رهروانو
د شپې چی نری‌پرخه په ګل اوری واړوو
هغلته چی راوړی د خوشحالی بهار ګلونه
« پسرلیه » یو ځو شپې به موږ هم هوری واړوو

۷ - ۷ - ۱۳۷۰

---

هیری په میخور کړی د ساغر اوبه
ستا دمخ له مخه د کودر اوبه
ما وې تږې سترګی به اوبه کړم پرې
تاو د مخ یې ډیر و ، شو نظر اوبه
ماته دی پر مخ شوه د حیا خوله
اخلی می د زړهٔ ورنه پرهر اوبه
شیخه څه ترخو اوبو ته پریږده موږ
ستا تر سر دی واوړی د کوثر اوبه
ډیری می سنکل کړې یاقوتی شونډی
نه ماتوی تنده د ګوهر اوبه
هر څه چی وو موږ ته وطن سنکلی و
کب ته وی خوږې د سمندر اوبه
اور دزړهٔ ته څوك لری « پسرلیه » تاب
سور آتشفشان کړی اوچت غر اوبه

۱۰ - ۷ - ۱۳۷۰

---

تنکۍ هیلی می بیا د زړه پردو کی دی ساتلې
څو پیغلی ښاپیرۍ می په شیشو کی دی ساتلې
ملا ، په مسلو می تنده مه راډېروه
ساقی د ژوندي شیری را ته پیالو کی دی ساتلې
نګاه دی د ښو له سیوری مې مېړه چی ووحی
دا ښکلې قنیرۍ لا په پنجرو کی دی ساتلې
ای باده په احتیاط یي په مخ زلفی اړوه
څو ټکی یي بیا خدایزده په دې ورو کی دی ساتلې
افسوس چې د ژوند فلم را ته نه ږدی بیا له سره
ښې ښې صحنې په تیرو ورځو شپو کی دی ساتلې
چی تیر شو ، هغه تیر شو څوك یي څه کوی پوښتنه
رموز شناختی په متروکو مقبرو کی دی ساتلې
چی ستا ورپسې شیخه د زړه سترګی ووتلې
هغه حوری فنکارو په نغمو کی دی ساتلې
که ځان رسوی پوهی ته د جهل په لار ورشه
اوبه یي د ژوندون وایي تیارو کی دی ساتلې

۱۳۷۰ -۷ - ۱۰ - پیښور

---

بې له تا مې ستا په یاد وه بېګنۍ شپه
په بلبل ، په پنجره کې د سپوږمۍ شپه
اندیښنو را نه آرام د زړه اخیستی
لکه وی پر میږتون د غرځنۍ شپه
ستا د زلفو په یاد واوړم په بستر کې
تصور دې را ته شپه کړې د نتکۍ شپه
تر سبا له رڼو ستوریو سره رغښتم
چې دا زه وم لیونی ، که لیونۍ شپه ؟
د سحر رڼا به څه راته ښکاریږي
چې په زړه مې وی د ناز د ښاپیرۍ شپه
تا و د مینې دې دی دا چې لکه شمه
په ولاړه تیروی په ما کرۍ شپه
له سپوږمۍ سره ته هم وخیږه بام ته
د پسرلی شپه کړه لږ نوره هم تنکۍ شپه
چې ریدی وی غوړېدلی په « آبدان » کې
د جنت شپه وی «پسرلیه» د کیږدۍ شپه

۱۳۷۰ - ۷ - ۱۱ - پیښور

---

ورا د ښاپیریو ده ، که وینم د کوکچې څپې ؟
یا خو وهی ستا په مستو سترګو کی عشوې څپې
ډوب می کړی په نور کی تصور د یوې وړې نګاه
وای که د « آمو » غوندی را واوښتې څپې څپې
داسی می حیا ورته خبره خولهٔ کی واړوی
داسی لکه سپکی کړی له غاړو خخه پښې څپې
حسن هم دی دغسی ، پتنګه ځان پرې مه وژنه
ښکلې وی له لری خو خطر لری نژدې څپې
موږ به بې کپتانه ، بې فرمانه بیړۍ څه باسی ؟
بحره توپانی شه درنه غواړو یو څو ښې څپې
مه خاندئ د شمو په مړو اوښکو پوری مه خاندئ
شوخو ستوریو پام کوئ بحرونه دی دا مړې څپې
ستړی سیلاب هله سمندر ته رسیدلی شي
کله چی روانی شي یوه په بله بسې څپې
څه وړی « پسرلیه » سیلابونو باندی ښکلی خیال
چا کله شمیرلی دی د سین د ترانې څپې

۱۳۷۰ - ۷ - ۱۸ - پېښور

---

د غربت په لار کې ښه يوو موز لا بيا هم
ورکوي لوري په شکو کې دريا هم
نيم نظر يې دومره پوه کړم په محفل کې
مجبوري لري د عشق غوندې ښکلا هم
خدايزده څه سحر وجادو يې و ليمو کې
چې شکوې شوې رانه هيري تمنا هم
د هغو ښکلو له نازه به څه وايم
چې غرور يې ښايسته وي ، استغنا هم
جنتونه به وي ډك له طفيليانو
د دنيا غوندې که ويش وي په عقبا هم
چې بيګاه مې سر ته شمه ژړيدله
له پتنګ سره زړهٔ وسوځاوه ماهم
ساقي ناوري مګر شور د حجابونو
پرده بويه له شيخانو د مينا هم
د زړهٔ سوز يې تنها اوښکې وچې نه کړې
« پسرلی » په خولهٔ کې سوې ده نوا هم

۱۳۷۰ - سرطان

درد نه مې بې دردي کلۍ څه پوهېږي
څه پوهېږي ، د ناز ليونۍ څه پوهېږي ؟
شور دعشق ته بويه د آبشار سرود
دې مقام نه ماته شپيلۍ څه پوهېږي
کله چې يوسف باسي بازار ته وخت
هلته نو بيا تول د وړۍ څه پوهېږي
پور د شهيد زړه د دې په غاړه دی
غاړې ته يې ګوره اوزي څه پوهېږي
حسن هم دزړهٔ پريشانۍ لري
ګل وپوهېږه ، تانده غوټۍ څه پوهېږي
ناز د مهرويانو دی دليل دناز
حسن يې درم له هوسۍ څه پوهېږي
مغز و اراده بويه نه تاج د خول
شاه وپوهېږه تاج وخولۍ څه پوهېږي

۹ - ۷ - ۱۳۷۰

---

راشه ، ای د خیال پری را ښکته شه
زما د تورو شپو د وربل نته شه
مه مې څه له سره د وربل سودا
لکه تور ځنګل نوره هم تته شه
څه به دې ستایم زه رویایي ښکلا
چا وې چې تر فهم مې وچته شه؟
لیر څه مې لا نوره هم نشي دحسن
زما د سترګې ساه غوندې تریته شه
کومه چې د عشق په پردو نه کرځې
پرې دې هنر منده هغه ګوته شه
حسن هم خپل پت غواړی ، هم پت دعشق
چا ویل مجنونه چې بې پته شه
میاشت که د اختر هم یې د خدای په پار
لیږ راته له ورایه څو جوته شه

۱۳۷۰ / ۷-۹ - پیښور

---

هر څه چې يي را شه چې یادیږي مې
تالنده بریښنا شه چې یادیږي مي
یوه لمحه شه زما د واړه سترې ژوند
یوه خوره موسکا شه چې یادیږي مې
څو به په رویا کې سره غواړو موږ
خوبه په ریښتیا شه چې یادیږي مې
واړه عمر ستا وم ، پشیمان نه یم
یوه لحظه خو زما شه چې یادیږي مې
نه وایم چې پنهې د ناز مه را وړه
درست سره ادا شه چې یادیږي مې
ماته مې چوپتیا کړه د ښایست بطې
مستې په غوغا شه چې یادیږي مې
ډیرې مې تیارې د هجر ونغښتې
ستورې د سبا شه چې یادیږي مې
څو به لا د نازد تقاضو منې
راشه او پخلا شه چې یادیږي مې
کله چې راځې د« پسرلې » شعره
شوخه تمنا شه شه چې یادیږي مې

۱۰ ۷ - ۱۳۷۰

---

د مینی قربانیان هری هوا ته مه پریږده
نیم سوی پتنکان شمې ! سبا ته مه بریږده
له روغی میکدې ښه ده که مات سرونه یوسو
ساقی ، د محتسب تیږه مینا ته مه پریږده
که رحم پرې کوی د تا په بند کی یې ده ښه
دا خیری لیونی زړهٔ بلی خواته مه پریږده
بنو ته خودی ووایه چی نه یې تخنوی
د زړه زاړهٔ زخمونه می موسکا ته مه پریږده
له ژونده به می وچوی زړګی که شو تنها
ما یوه شیبه د حسن خیاله ماته مه پریږده
حاجت د قهر څه دی په بوسه یې شې ترلی
پارچاوه خوله می شوخی تمنا ته مه پریږده
که ما منع کولی شې له چیغو « پسرلیه »
د غرونو آبشارونه هم ژړا ته مه پریږده

۱۳۷۰ - ۷ - ۲۳ - پیښور

---

د تا آواز و، که می اوریده آواز د حسن ؟
ته می لیدې ، که مجسم شو راته ناز د حسن ؟
ملګرو لږ.می لا د خیال خلوتکدې ته پریږدئ
چې د تنکی زړه له پردو می اورم ساز د حسن
ژوند یوه پیچلې معمیٰ وه ، مرك یې بله غوټه
نه څوك د مینی په راز پوه شو نه په راز د حسن
که د یاقوتو په رګونو کی کړی وینه وچه
لا یې د سرې خولګۍ موسکا کنهٔ آغاز د حسن
ستوری ، سپوږمۍ به ښایسته وی خو زړه نشی وړلای
هره لحظه چې یې بل شان نه وی انداز د حسن
څیری ګریوان به غوټۍ څو لا په موسکا پټوی؟
بې نیازه ښکاری خو تر مینی ډیر دی نیاز د حسن
داسیٔ سترګو د بنو ګوتو ته ورغی زره،
هره شیوه یې بل عنوان وی ، بل آغاز د حسن
د شمی اوښکی ، د بلبل نوا او شور د څپو
« پسرلیه » ماته شی جلا جلا غماز د حسن

۱۳۷۰ - ۷ - ۲۳ - خیبر پلازا

---

که خپل زړه هم لکه شمه کړی اوبهٔ څوك
په محفل کی یې نوم نه اخلی په خولهٔ څوك
د شرر په پله چا پلونه نه دی ایښی
په صحرا کی د جنون نه غواړی ملهٔ څوك
حوادثو داسی ورك کړو لکه وی چی
په روانو شکو پاته کوم ویدهٔ څوك
زړهٔ می خپل خیال ته پرېږدئ ، جرم نه دی
چی کوی له فرشتو سره خوالهٔ څوك
حسن او مینه د یو ګل څانګی ریشی دی
را ته مه وایه چې زه چیری او تهٔ څوك ؟
جام د جم چې وایي دا دی نور څه نشته
کاشکی کیږدی د بل چا په زړهٔ لیز زړهٔ څوك
د عشق راز څرنګه ووایم زاهد ته
په اومه ګړی کی نه راوړی اوبهٔ څوك
د « پسرلی » له شعره څه فلسفه غواړئ
د آسمان له ورشو نه ریبی واښهٔ څوك

۱۳۷۰ - ۷ -۲۳ - پېښور

په سترګو کې دی کاشکې څه اثر ویده کیدای
پرواز کې دی نظر لکه شرر ویده کیدای
مجنون به د دنیا په شیرازیو نه توکل
دردونه که دزخم په بستر ویده کیدای
د ناز ګرم محفل ته به مې شا نه اړوله
دا سوی سپیلنی که په مجمر ویده کیدای
چې خیال ته دی وزګار وای لکه عطر د شبو
ماښام را ویښیدلی او سحر ویده کیدای
زما ماته تندیه که قسمت دی ماتیدل و
تو ته یي د ګړی وای په ګودر ویده کیدای
د عشق بد ګومانیو را ویښ کړی تشویشونه
موجونه شوای د بحر ، سر په سر ویده کیدای
پامال وی تل « پسرلیه » د کبل غوندی پریوتی
نو کاشکې په ولاړه لکه غر ویده کیدای

۱۳۷۰ -۷ -۲٤ - پيښور

چې ته رانغلې ما به څه کوله ولې نګاه ؟
اوښکه شوه ، توی شوه هغه تا ته سپمولې نګاه
تامی د خیال په هسکو څوکو خپل بیرغ تومبلی
تامی دزړه د بحر تل ته رسولې نګاه
لیرې یې له سرو باړخو د تورو بڼو سیوری ته کړه
د لمر په سره تبې مې ډیره کړولې نګاه
د حقیقت په لټه فکر رانه لار ورکه کړه
په ترورږمیو مې بیځایه غورولې نګاه
ژوند مې شوښکلی ، په هر څه کې رنګینۍ وینمه
عشق د بودۍ د تال په څیر رارنګولې نګاه
د حسن زور یې تنها نه دی کاږه کړی بانه
د ناز لمسون یې وی له لارې اړولی نګاه
دا چې له نازه یو قدم په اشرفۍ نه اخلی
څه به مې وکړی په سر سیوری نازولې نګاه
سپینو تناکو کې « پسرلیه » سر پناه ورکوم
چې مایوسی وی بیرته زړه ته تمبولې نګاه

۱۳۷۰ –۸ –٤ - پيښور

---

ځي چې پته خوله د بل په لاره ته به پاته يي
ستن به ځان ايستلی وي خو تاره ته به پاته يي
کاشکی له پښو سپك وای د زړه غمه د سرور غوندی
ګل به رژيدلی وی او خاره ته به پاته يي
داسی لکه مړې ايرې چې پاته شي له سره اوره
زه به دا زه نه يم خو پرهاره ته به پاته يي
جار دی له پايښته شم که هر څه هر څه ختم شي
عشقه ، ای زما دزړه آزاره ته به پاته يي
چا وې چې امام د عاشقانو خاوری کيږی خو
ای د وحشت ځلې ، هسکه داره ته به پاته يي؟
مه وهه بيواکه چيغی ، سر له کاڼو مه وهه
واوره به خدای ويلی کړی آبشاره ته به پاته يي
ژوند دی لکه شمه په لمبو پوری تړلی دی
څو چې دی خواری وی نو ای خواره ته به پاته يي
مست سيندونه ګوره چې ژوندی په هلو ځلو دی
هرڅو چې دی لار وی نا همواره ته به پاته يي
نه به پسرلی وی ، نه يي غم ، د « پسرلی » شعره
خدايزده چې د چا د زړه له پاره ته به پاته يي

۱۳۷۰ -۸ - ٦ - پیښور

---

چې ستا سره مې مخ په مخ لیدلې آئینه ده
د زړهٔ تر پښو مې سل ځایه ختلې آئینه ده
له لرې رونه لمر درته نیولې آئینه ده
سپوږمۍ د تا په مخ کې زنګ وهلې آئینه ده
په پرخو لمبیدلې ګل مې مه غواړه په قبر
لهٔ خاورو د شهید دې ټوکیدلې آئینه ده
د تا چې ورته شا شي رنګ یې سپین وي تښتیدلې
خونخوارې مګر تندې دې زیښبلې آئینه ده
د زړهٔ ماتې ټوټې مې ټولوم او ورته ژاړم
آخر د تا له سترګو را ولیدلې آئینه ده
په هره ساه که وکرځوم لپه وینې لیږ دي
چې ستا د خیال په لمسه مې خوړلې آئینه ده
راز دارې ستا د پټو عشوو یوه هم افشا نه کړه
په خیال کې مې که هر څو نښتیځلې آئینه ده
چې لاس دې ور رسیږي نه یې خوند وي نه یې حسن
سپیره نړۍ له لرې یوه ښکلې آئینه ده
جلوې د ښکلې مخ د اباسین په څپو مه وړه
د تا د « پسرلی » نګاه یو ه غلې آئینه ده

۱۳۷۰-۸-۷ - خیبر پلازا

---

د تا نظر می د یادونو سمندر کی اوښت
که سمندر و د موجونو په څادر کی اوښت ؟
شراب خو نه مستوی زړونه تر څکلو پخوا
کیف دی د سترګو وو ساقی چی په ساغر کی اوښت
دا په اوبو کی وو د تا د سپینو لیڅو تصویر
که زلمی کب و له مستیو نه په ګودر کی اوښت
خیال دی یوه لمحه هم نه یم فارغبال پری اینبی
لکه د سر د خطر فکر می په سر کی اوښت
چی یي له لری په یو ځل لیدلو وړی زړونه
توفان د حسن ، که خپل آب و په ګوهر کی اوښت
بیګاه می ته خوب کی له حسنه ناکراره لیدي
که د کوکچی سین د زریفتو په بستر کی اوښت
شوخو جلوو یي پرده واخیسته د مخ له مخه
یا خو بل اور د ځان ښودلو و په لمر کی اوښت
لکه بهار چی د فرخار کړی بام و در ګلونه
ستا « پسرلی » هم ستا په بام او ستا په در کی اوښت

۱۳۷۰ - ۱۰ - ۱۲ - پېښور

---

لکه چی وچ سپېلنی ورشي د مجمر په ګوتو
داسی می سوځی د فکرونو بال و پر په ګوتو
پرېږده وزمه شم ستا په نرموزلفو لاس ووهم
نغمه را باسی له تارونو هنرور په ګوتو
بیکا می بیا په زړه ولاړه د نشتر غوندی وي
د آسمان ستوری می شمېرل لکه نشتر په ګوتو
تر ځنبلو وړاندی می احساس واړه نشه نشه کړي
چی وینښند ویه را ته ونیسی ساغر په ګوتو
په ډېر حسرت می ا مید ونه ټولومه له زړه
لکه باغوان چی ټولوی وروستی ثمر په ګوتو
په هغه لطف یې د زړه خبره ونغښتله
په هغه حسن چی پر مخ ټینګ کړی څادر په ګوتو
لکه ړانده چی د رندو کتاب په ګوتو لولی
زه یې د زلفو کیسې ښه لولم اکثر په ګوتو
د تصور په شنه لمن کی د ښایست ملکه
له نازه تله لکه وړانګې د مازد یګر په ګوتو
د لمر د زړه غوټه به خلاصه شي دچا په همت
سحر که خلاصی شي د شپې غوټی د لمر په ګوتو

۱۳۷۰ - ۱۰ - ۲۲ - پیښور

---

لا مې زړه نه وه ساه اخیستې د زارو په ژبه
شپې د سکوت اعلان را خپور کړ د تیارو په ژبه
بهار و ، بن و ، هرې پاڼې داستانونه لرل
خو زه ساده نه پوهیدم د ننداړو په ژبه
د حسن او مینې په عالم کې حاجت نه وې د ژغ
ستوریو یو بل ته څه ویل د اشارو په ژبه
د مهر او مینې د مرهم په لطف څه پوهیږي
څوک چې پوهیږي بس د تورو کټارو په ژبه
خدایزده ددې توری مرغۍ په زړه به څه غوته وو؟
لکه ښارو نه پوهیدمه د ښارو په ژبه
چې د صنم نغښتې موسکا یې زړه ونه غورځوي
څه به ځان پوه کړي د جومات د منارو په ژبه ؟
« پسرلیه » ونیسه په مینه کې لمن د هنر
د درخو زړه آدم ورمات کړ د لارو په ژبه

۱۳۷۰ ۱۱ - ۷ - خیبر پلازا

---

ساقی ، سرکش افکار می په جامونولاندی کړه
خپل چاری فرعونان تر اهرامونو لاندی کړه
د حسن تاخت وتاز ته به یې څنکه شی څوك ټینك
د زړه کلا یې یاد په سلامونو لاندی کړه
چی زلفی یي را تیتی کړې په خال باندی نسیم
دانه وه په سلا یي له دامونو لاندی کړه
د تا دکور صفا می چیرته نه ولیده مینې
دنیا که می سنل واری له ګامونو لاندی کړه
د لمر د تسلط سیمه هم تل نه وی د لمر
زما په یاد زر ځلی ماښامونولاندی کړه
سیلاب ته چی جذ بې د بهیدلو ورکړ شور
دنیا یې په دې نرمو اندامونو لاندی کړه
پولی په زړه را وختې اختر به وی « پسرلیه »
توده بید یا چی سپینو احرامونو لاندی کړه

۱۳۷۰ - ۱۱ - ۷ - پيښور

---

ساقي د زړه په تنده مې يو جام واړوه
له ځانه مې د حسن خواته پام واړوه
دنيا به دې دحسن پلوشې توده روڼه کړي
د لمر غوندي د ناز له پولي ګام واړوه
منکره د فرعون غوندې د عشق له حقانيته
له شرمه په سر تيزي د احرام واروه
درواغ به کړي خيره د حقيقت ځرنګه مسخه
دا چا وې چې د مهر غوندې نام واړوه
په تل د سمند ر کې لکه سيل وروړي شګې
که خپل د رنښت دي وساته آرا م وا ړوه
د خداي په کور کې هم ظالمه پياز په بډه کرځي
حاجي ليز خودي پيخه د احرام واړوه
منم چې نړيوال مو اخلا ل ګر دي د خيالونو
« پسرليه » د کوم ورك ستوري په بام واړوه

۱۳۷۰ - ۱۱ - ۸ - پیښور

---

په هغه شان چې بصیرت مومی مغان له اوره
داسی می وشوې د زړهٔ سترګی د هجران له اوره
څوك به د مینی غرغنډو ته څنګه زړهٔ ونیسی
غر په لړزه شي د واړه آتشفشان له اوره
پیاله که ماته شوه په لپو کی به هم وڅښو می
الله د ی وساتی د مستو تاکستان له اوره
مځکه یې اور وه ، لمر یې اور دی ، ستوری هم اورونه
داسی ښکاریږی چې جوړ شوی وی جهان له اوره
چې می په سوی زړهٔ کی وینم ژوندۍ شوې هیلی
دا به ریښتیا وی ، پیدا کیږی به کبان له اوره
شفق په هومره اور د غره د سر کنګل مات نه کړ
عجیبه نه ده که می روغ دی ګریبان له اوره
« پسرلیه » څوك چې له سرو میو نه په ډډه کرځی
ملامت نه دیٔ همیشه تښتی لیوان له اوره

۱۳۷۰ - ۱۱ - ۸ - خیبر پلازا

---

چی ښومره دی رنګونه په رخسار اوړی را اوړی
زما په زړه او ذهن یو بهار اوړی را اوړی
افسوس دی چی یو ځای ته یې هم نه ورسولو
په سر کی مو د سیل غوندی افکار اوړی را اوړی
پوستنی ته یې یو ځلی را ستړی نه شو څوك
بس څریکی می د شنه زړه په پرهار اوړی را اوړی
د تا د زلفو بوی وریاندی ښکاری لګیدلی
نسیم اوړی را اوړی ، لاله زار اوړی را اوړی
هغومره د نغمو په پر اوبال لګوی اور
چی ښومره د فنکار له لاسه تار اوړی را اوړی
آرام به څه را ویخښنی دا شپې ورځی د ژوند
شپې ورځی چې له زخمه لکه مار اوړی را اوړی
بیکا چی ته ویده یې « پسرلی » دی تصور کی
کریږشپه لکه سیوری په دیوار اوړی را اوړی

۱۳۷۰ - ۱۱ - ۱۱ - خیبر پلازا

---

چی پسرلی شي ، سپیرې دښتی کړی چکن ګلونه
غرونه مو را وری درته بیا لمن لمن ګلونه
را ځه را ځه مقدم دی خدای د پسرلی وزمه کړه
چې تخنوی د شهیدانو د مد فن ګلونه
چی ستا په پښتو کی یې نثار کړی را وتلی به وی
د رنك وبو تحفې په لاس کښی د وطن ګلونه
ستا د پښتو خا پی مو په زړه ګوندی د یوې بلی کړی
لکه د تورو خورو زلفو په شکن ګلونه
د نیکمرغیو په امید دی واړه لاری څاری
لکه بهار ته انتظار وی د چمن کلونه
د پتنك زړهٔ به څه تکور شی په تصویر د شمی
بي تا به څه کړی د زړهٔ سره ستا مین کلونه ؟
را ځه را ځه ، در سره هغه « پسرلی » را وله
چی د سمند پښتو ته دی ویړ کړی د سمن ګلونه

۲۵ - ۷ - ۷۱

---

تیارۍ د زړهٔ د مینی په وړانګو جارو کوم
ستا لاری لکه ستوری په شپو شپو جارو کوم
د مینی په حرم کی می خچنی هیلی نشته
د خیال لاری دی زړهٔ ته په بڼو جارو کوم
خزان د زندګی چی برګ ریزان راوړ د هیلو
د تت ځنګله لمن به می تر څو جارو کوم ؟
په نیاز چی د جهان ښکلی را بولم تصور ته
حُجله دی په شهپر د ښاپیرو جارو کوم
چی زړهٔ ته ستا له مینی سوا هره مینه راشي
سیلاب شم ګنګړخلي په څپو جارو کوم
دُرشل د عالي حسن مه شه لوګ له سر پری کړیو
ستا عرش له بۍ احساسه فرشتو جارو کوم
شوخی یۍ د نظر را نه قرار د نظر واخیست
آرزو د لیونی زړهٔ په آرزو جارو کوم
ساقی دا د نشې قدردانی ګڼې که نه
توبې د توبه ګار زړهٔ په توبو جارو کوم
د حسن د زړهٔ خوښه نغمه راشی ګوندی خولې ته
نغمې می « پسرلیه » په نغموجارو کوم

۷۱ - ۹ - ٤

---------

چی د مینی اور پرې بل وي کور یې نه وي
د شرر جنازه باد وړی گور یې نه وي
د افکارو نهنگان نه شي روزلی
د وریځو سمندر چی شور یې نه وي
چار ناچار تر هری میږی لاندی ځو
هغه وری شول را نه جور چی مور یې نه وي
وروګلوي وي په ژوندو کی ، نه په مړو کی
سیوری خپل وي د انسان خو ورور یې نه وي
هرسړی به و رستم که په اسباب وای
رخش یې چا ته زینوئ چی سپور یې نه وي ؟
خود خواهي کړي راته تولی لاری بندی
تر نری سپم وځی تار چی پسور یې نه وي
به ساړه عالم کی زه هم شوم د مُغ زړهٔ
سوی یم هغه اورتون چی اور یې نه وي
اندیښنې می عشق ریښې د پلوشو کری
چی په هره خوا غځیزی لور یې نه وي
یا بې سره افغانان دي « پسرلیه »
یا د مینی مقتولان چی.بور یې نه وي

۷ - ۱۰ - ۷۱

---

مینه می کاشکی ویده شوې طبعه وتخنوي
هسی می چاودی چاودی تلی د زړهٔ څه تخنوي
ښایست د سترګو په لار هره سینه‌نه رونوي
ښکلی عبث هر درځه د لمر په وړهٔ تخنوي
د مړه احساس خاوند به څنګه شي را ویښ له چیغو
د ګور چینجي ګوریٔ تر مرګه پراته مړهٔ تخنوي
بلبله څه لولې ګلونو ته د حسن باڼی
د خپل ښایست غرور په غرونو کی غرڅهٔ تخنوي
د مینی مست د ساقي ست ته سترګی نه غړوي
په سمندر کی د زړهٔ تاو دی چی اوبهٔ تخنوي
ناکرار زړهٔ به می آرام مومي په وصل کی څه
هره ادا یي هر یوه تر بلی ښهٔ تخنوي
آتش فشان چی « پسرلیه » وروي اوررونه
د خود بینی لمبی چی کله د غره‌ء زره‌ء تخنوی

۷۱ - ۱۰ - ۸

---

د شپې زړهٔ چوی خو د ناز په خوب ویدهٔ رانغله
تر خیال نازکه می د سترِی خیال په پلهٔ رانغله
له زړهٔ تر ژبی پوری لاره مو وه غریو نیولې
گیله می هر څو هڅوله خو په خولهٔ رانغله
وفا هم نه کوی وفا له مینانو سره
وفا می ډیره وپالله خو په ښهٔ رانغله
د زړه په غولی سترِې شوی می له زړهٔ نه وځی
یوه آرزو چی می په خوله ورته له زړهٔ رانغله
پرته له اوښکو یې د لطف بل ځواب نه لرم
د زړهٔ خبره می څو نه شوله اوبهٔ رانغله
نیمه خوا ورځ د تنکو هیلو غرونه هم نړوي
زړه ته به څهٔ وایم چی څهٔ شوه او په څهٔ رانغله
د مراوو هیلو په گلشن می « پسرلی » رانغی
سترگی می وچی شولې لار ته په کاتهٔ رانغله

۷۱ - جدی

---------

راغله نوك نيولې خو د غرو تر اوبو مسته ځي
خدايزده دا عمر سبه لمحه د چا له کسته ځي ؟
دا که خپل تصوير ته زدې سر ، خپل تصوير يې دې ته زدی
داسی په هوس چی آئينې ته خود پرسته ځي
کله می په خيال کی هم يوه لحظه را تم نه کړه
شوخه د زمان د قافلې غوندی پيوسته ځي
پيښی حادثې ورکړی فرياد ته د شاعر وزر
شور د سين تر لرې د څپو له خيز وجسته ځي
خوارو بی اسبابو ته په خواره سترگه مه گورئ
ډير بی لاس او پښو کبان په روغ صورت له شسته ځي
بل به لا په بده ورځ په بل پوری څه نيسی لاس
هوش حواس او فکر چی د چا له سره درسته ځي
مه کوه « پسرليه » له تقليده د عروج تمه
وگوره سايې ته که د غرونو هم وې پسته ځي

۷۱ - ۹ - ٤

---

چی ستړې اندیښنه می له کابله نه راځي
د حسنملکه شوه له محله نه راځي
زما په تش کوګل کی به څه زور وي د فریاد
د تشی شپیلۍ زغ خو له مورچله نه راځي
طلسم د ښکلا کړه را ته عطر د ګلونو
وجود یې حس کومه خو په خپله نه راځي
د حسن له غروره به یې چا ته اوړی پام
چی لمر یې لکه سیوری له درشله نه راځي
په خپلو خیالونو کی تل ډوب ښهٔ وي مین
ګوهر په خوښه سطحی ته له تله نه راځي
د ضعف انتها به یې ګڼی حسن که نه
ناله می چی تر شوندو له کوګله نه راځي
چی طبعی می د شعر پښه نیولې « پسرلیه »
خزان وهلی بڼ ته خو بلبله نه راځي

۷۱ - ۹ - ٦

---

ما چی و ی زه یم ، زما ساه ده ، تله خاموشه ځواني
لکه هوا می اوښته له سر او دوشه ځواني
لکه د غره اوبه چی کیږدي په لمنو کی سر
د زړبودی په ډاګ کی ولویده له جوشه ځواني
لکه د شپې چی د شبو له غیږی وځی عطر
دغه شان وځی نامحسوسه له آغوشه ځواني
حیف چی د ښې لاری ملګرې می ونه پیژنده
څه به زه مست وم ، څه روانه وه روپوشه ځوانی
خاوری اوښتې وې په ډیرو فرصتونو باندی
څو چی لنډیږی د هوش کلی ته مدهوشه ځواني
که په مړو ګوتو نیم ساغر هم تم کوم ډیره ده
ساقي څه غواړې رانه هغه دریا نوشه ځواني
نه یې زه وینښ کړم نه یې نور له خوبه ولټول
ښه شوه چی لاړه لکه پرخه بې خروشه ځوانی
اوس می د ژوند له رژیدلیو پاڼو څه پوښتې حال
« پسرلیه » تللې د پسرلی غوندی ګل پوشه ځواني

۷۱ - ۵ - ۸

---------

سترگی را پورته کړه بنو کی نظر وتخنوه
د تروژمۍ په نیمو شپو کی سحر وتخنوه
چی د ژوند ورځو کی مو ساه د خوښۍ وغړیږي
په شوخو سترگو دی داپته خوله لمر وتخنوه
هسی نه پښتې مو لکه لاری ، لار کی وغزوو
د عشق جرسه څه مو ذوق د سفر وتخنوه
د حورو میرې د جنت قلم می بیا غواړی زړه
راشه په حسن دی رنگین مازدیگر وتخنوه
چی له ورو ځپو یې پاڅیږی توفان د نشو
په سرو منگلو دی خوب وړی گودر وتخنوه
لوبی می څه کړې په احساس د څوارلسمی سپوږمۍ
دا در ته چا وې چی آرام سمندر وتخنوه ؟
لکه مطرب چی په مضراب ور پاروي تارونه
بیا د « پسرلی » په ستړی زړه کی هنر وتخنوه

۷۱ - ۵ - ۸ - پېښور

---

شعله يې که محفل کې د نګاه را رسيده
د سرو شونډو موسکا يې عذر خواه را رسيده
که شرم مو تر منځ ږ ووه غرونه درولي
زما تر سترې زړه يې توده ساه را رسيده
ثواب نه که محروم شوم له ميراثه د آدم
ما خوار ته خو به هم يو څه ګناه را رسيده
چې شوم د مايوسيو په ساړه دوزخ کې ويلي
لمبه د اشتياق يې خامخا را رسيده
خيال يې دومره پورته خېژولي وم « پسرليه »
چې بس له مځکې والو خپله آه را رسيده

۱۲ - ۷ - ۷۱

---------

تش جام مې د ساقي دکه مینا ور زغوله
که حسن د مین زړه تمنا ور زغوله ؟
درځې مې د زړه پرانستې د حسن تصور ته
له لرې پنځلسې د لمر رڼا ور زغوله
قربان یې په لیمو کې د نګاه له مهارته
په څومره نزاکت یې استغنا ور زغوله
د زړه سترې نغمې نه ویدیدې ، نه لتیدې
رازداره شپه یې درسته شپه بیګاه ور زغوله
محفل کې به یې زما په زړه کرل ښایی ګلونه
پستو شونډو چې دم په دم موسکا ور زغوله
زړه پاله که د شمې وزر سوونکې رڼا نه وای
نیم سوې پروانه خواره به چا ور زغوله
له ما سره خواله و د سر کشو امیدونو
موجونو له مستې خپله دریا ور زغوله
د وصل تصور مې تر سهاره و په زړه کې
د حسن ګنهکاره یې تنها ور زغوله
تندي ګلونه هم لرې د عشق د کیسو تنده
وزمه یې د « پسرلی » له زړه بیا بیا ور زغوله

۱۳ - ۷ - ۷۱

---

دا وزی د قدرت له لوړ مقامه بوسه اخلي
که روح د فرعونانو له اهرامه بوسه اخلي
بلبل غریب أمی دی ډیر یې مه پوښتئ له مینی
ساده مومن یواځی له کلامه بوسه اخلی
کل فیض د مینه پالو زړونو دی په سپیره مڅکه
چی لمر یې هره ورځ له در او بامه بوسه اخلی
مستی چی یې له ځانه وي په یوه غوړپ نشه کیږي
ځپه د سین له غاړی نا تمامه بوسه اخلی
ریښتیا یې دی ویلی حرکت کی برکت دی
چی مڅکه د رهرو له هره گامه بوسه اخلی
« پسرلی » ته ستا له مخه دا دنیا حسن کده شوه
د دوو سترگو له باره له بادامه بوسه اخلی

۱۳ - ۷ - ۷۱

---------

چی ځی نګاه می ستا له هره ګامه بوسه اخلی
یوه مور شي له ویدې بچي آرامه بوسه اخلي
آرزو د ښکلولو می په زړه کی لیونۍ کړي
موسکا چی یې د سرو شونډو له جامه بوسه اخلي
د شپې په تاریکۍ کی می سپوږمۍ ډیره لیدلې
چی ورو ورو در ښوئیږي ستا له بامه بوسه اخلی
په دې جرم یې مه محکوموه په تیټ کتلو
نګاه می ستا له مخه که بې پامه بوسه اخلی
تر څو به دی وی هو یا نه په خوله کی پنبه نیولی
احساس به می تر څو له پټ پیغامه بوسه اخلي ؟
په سترګو کی می ډب شول رونه څاڅکی چی را نغلې
لومړي ستوري ښکاره شوو له ماښامه بوسه اخلي
د زلفو په حلقو کی چی یې خال ته اوړي سترګی
د یوه وږي صحرایی مرغۍ له دامه بوسه اخلي
د شمو اوښکی څکه څاڅکی څاڅکی را څڅیږي
چی ترږې پروانې له شمی خامه بوسه اخلي
« پسرلیه » ګوندی خواوي د حسرت را سنره شوې
چی ځړیکی می له زخمه له ناکامه بوسه اخلي

۱۵ - ۷ - ۷۱

---

ثمر به د عشق څه په مهرو ماه کی لویوم
زخمونه د زخمونو په پناه کی لویوم
گومان د مازدیگر د سیوری مه کویٔ په ما
چی قد به یې د نورو په نگاه کی لویوم
د خم په ښنبو کی رغړم که می کین ووځی له زړه
دا یو ثواب په غیزه د گناه کی لویوم
د مینی گهواره چی د ښایست څوکو ته ورمه
وړ ذال می د سیمرغ په آرامگاه کی لویوم
د خولې په برسیرنو اوسیلو می مه تیروځه
یو پټ شرر د مینی په گیاه کی لویوم
په سهوه می ډیر مه نیسه د سوی زړه مالکه
څو تاندی تجربې په اشتباه کی لویوم
نظر چی یی ور واړوم بهو ته « پسرلیه »
رستم د اتلانو په سپاه کی لویوم

### ۷۱ - حوت

--------

په موږ که قيامت وي د دنيا يې باندې څه ؟
هوسيږ که مري که پايي د صحرا يې باندې څه ؟
له نوره رغوئ څه په تيارو کې روږدي شوي
ړوند که وي که نه د نابينا يې باندې څه ؟
تر خرو لاندې شوي د ماضي نيزو نو وري
له نن سره يې څه دي ، د سبا يې باندې څه ؟
زاهد که د پيالو په شرنګ له لري شو بې سده
د خُم ګناه ده کومه ، د مينا يې باندې څه ؟
اختيار د تا دې ربه که مو هر لوري ته بيايې
جنت ته ، که دوزخ ته د مُلا يې باندې څه ؟
څه پام غواړې « پسرليه » د قدرت له ليونو نه
که شل بيړۍ شي ډوبې د دريا يې باندې څه ؟

۱۵ - ۱ - ۷۲

--------

لاړه ، لاړه ، لاړه چې په خپل حسن آگاه شوله
شوخه مې د غرونو د رنګین پسرلی ساه شوله
ټوله ورځ مې لمر غوندې نظر ورته په لاره رغښت
سیوری شول تر سیوری لاندې ، رانغله ، بیګاه شوله
لاړم چې د زړهٔ غوټۍ یوه ، یوه ورته پرانیزم
واړه تقاضې مې سره غوټه شوې یوه آه شوله
خپله فکر ته سر ږدم چې د ناز د دُرشل سیوری شو
مینه ګمراهي ده ، که زما مینه ګمراه شوله ؟
اوس یې پلوشې له لرې هم را باندې نه اوري
والوته د لمر خورځه د بل کهکشان ماه شوله
وایې ورم د عرش له کنګرو مګر غومبر د ناز
اوس چې د « پسرلی » له تخیل سره همراه شوله

۱۵ - ۲ - ۷۲

---

نظر چی یې د حسن سیوری غواړی په وربل کی
له عقله شي لار ورکه د وهمونو په ځنګل کی
په ډېری سخت ګیری می زړګی مه را سختوه
پستې خټی کړي ژمی د غره ګټی په کنګل کی
مغلوب ذهنووی تل د خرافاتو میلمه پال
په فکر خاوري اوړي د چورتونو په غوبل کی
د حسن په ګلبڼ د خشونت سیلۍ الوتې
بی نخښی مرمۍ اوري د نیازمنو په کابل کی
تر هری بوي ادا یې ګوښی ګوښی چی جاریږم
د شاتو مچۍ نه یم چی خوازه غواړی په ګل کی
په شعر کی اوبه شوم لکه مالګه په اوبو کی
« پسرلیه » که می غواړې نور می غواړه په غزل کی

## ۷۲ - اسد

-------

ختمی شوې جذبې د زلما ، زړه کی غوغا کښېناسته
ولویدل سیلونه له پښو مسته دریا کښېناسته
پریردئ چی د مړه زړه په تابوت میخونه ټك وهم
شمه وم ، اوبه شوم ، لمبه لاړه ، رڼا کښېناسته
ما ویل د زړه غوټی به یوه یوه ورته پرانیزم
بیرته می په ژبه نا ویسا تمنا کښېناسته
دلته می د زړه په پرهر مالگی دوړوي مینه
هلته چی د دې په پستو شونډو موسکا کښېناسته
ستا د وصل بخت چی می له خدایه په زاریو غوښت
خوله کې می له ضعفه په زړه ستړی دُعا کښېناسته
جوش د مشتاقانو چی یې ولید ، په لمسون د ناز
لکه له کتاره پاته زانه تنها کښېناسته
ځای د خوا خوږي نه و جهان چی تنکی هیلی می
هر یوه ، یوه شمه شوه په خپله پاتا کښېناسته
څه غواړی « پسرلیه » د ځوانی ځوانه غزل له ما
نور می لکه ماته شپیلی زړه کی نوا کښېناسته

۷۲ - اسد

-------

دا لمرخرك د سبا سترگه د رڼا په پلو نغاړي
که د ناز مجسمه ځان د حيا په پلو نغاړي
چی د دروي په كوڅه کی يې تصوير راشي په مخه
تنکۍ هيلی مخ له شرمه د نوا په پلو نغاړي
زه به ستا د خوږې ژبی په وفا څه باور وکړم
ډير درواغ شته چی مخونه د رښتيا په پلو نغاړي
د بمونو لوگی گرځي ، د توپونو دوړي خيژي
مايوسي د زړه ماشومه تمنا په پلو نغاړي
داسی ښکاری چی ښايست وي د ملا په پښه ختلی
د فکرونو ښاپيرۍ چی د سودا په پلو نغاړي
سوړ دوزخ به مو جنت شي که ته راغلې پلو غاړې
په جنت کی کله حوري مخ له چا په پلو نغاړي
بی آزاره نه وي لطف هم د ښکليو « پسرليه »
د مطلب خوږې خبري د موسکا په پلو نغاړي

۷۲ - ٦ - ۲٦

---

خپله زخم خپله تیر یم د ویشتلي
ځکه سر تر پایه ویر یم د ویشتلي
د زخمونو به موسکامی مه تیروځئ
نه ښکاریږم ، پټ ضمیر یم د ویشتلي
چی حواس می شل په شلو لارو تللي
ترهیدلی ورك بهیر یم د ویشتلي
که پتیږبی نه شوم هیرمی کله مه شه
لکه وینی دامنگیر یم د ویشتلي
سور فریاد می شي په سترگو اوریدلی
را ته وگوره تصویر یم د ویشتلي
بې معنی ژوند « پسرلیه » بې معنی کړم
د نارامه خوب تعبیر یم د ویشتلي

۲۷ - ٦ - ۷۲

---------

د ژوند په قافله کې نه درا يم نه جرس يم
په پټه خوله مې بيايي خړ سيلاب اخيستی خس يم
پرون که د الوت ژوندی هوس وم په چمن کې
نن څه يم بس د خپلی وزر ماتې ساه قفس يم
خپل وس او حيثيت مې بوډا توب هم را ونه سنود
تر اوسه لا په زړه کې د محروم بچې هوس يم
وجود مې شته خو بس چې خپل زړهٔ وخورم لکه واوره
چې کله نه رسيږي په بل څه زه هغه وس يم
چې يو فرياد مې هم د ناز دُرشل ته نه رسيږي
نو خدای خبر « پسرليه » چې د کوم ستړي نفس يم ؟